میاشتنی

# حریت

داسلامی انقلاب داهدافو خپرونکی



کیدای شی مسعود دی خواته باوزنه سړی وی خو...؟





دهیواد وضعه په کوم لوری روانه ده؟

حزب وحدت ولی د «حکمتیار» په څنګ کی ودرید؟

جنرال دوستم ته دقلعجی په کتنه کی حکمتیار څه وویل؟

باید به این حقیقت تلخ اعتراف کنیم که افغانستان خانه مشترک همه ماست



مسعود «الوطن العربی» نشریی ته څه وویل؟

تاجکستان



ما و جهاد

بسم الله الرحمن الرحیم

# الهی فرمان

ووایه، الهی دکائناتو څښتنه ! ته چی چاته وغواړی
حکومت ور کوی او چی له چانه و غواړی ترینه اخلی
یی، چی څوك و غواړی عزتمن کوی یی او چی څوك و
غواړی ذلیل کوی یی، ښیگړی ستا په واك کی دی، شپه
په ورځ کی ننباسی او ورځ په شپه کی، له بی ساه نه
ساه لرونکی زیږوی او له روح لرونکو نه بی روحه او چی
هرچاته و غواړی بی حسابه رزق ورکوی.

آل عمران(٦) آیه

بسم الله الرحمن الرحیم


میاشتنی

# حریت

داسلامي انقلاب داهدافو خپروونکی

دليکوالو دشورى ترنظر لانـــدى

سرمحرر: محمد نذير« بشارت »

دریم کال لومړۍ او دوهمه گڼه د۱۳۷۲ کال د لړم او لیندی میاشتی (پرله پسي لمبر ۱٦-۱۷ مه


## په دی گڼه کې يې لولئ



## بانکی پته

اکاونت نومره ( ۷۰۱٤ )

عمان بانك لمیتد پشاور پاکستان

## د گڼون بیه :

کلنۍ په پاکستان کې (۸٥) کلداري

په اروپا اوامریکا کـې (۳۰) ډالره

په عربي هیوادونوکې (۷٥) ریاله

دیوې گڼې بیه په پاکستان کې (۱۰) روپۍ یادهغه معادل ،


مؤقت پښتی آدرس:

میاشتنی حریت، پست بکس ۷۰٦

یو نیورسټی ټاون پیښور


کمپوز و دیزاین از: مصطفی« سحر»

بسم الله الرحمن الرحیم

**سرمقاله**

# دحریت بیا پیل

موږ د ۱۳۷۰ هـ ش کال دچنگابښ په میاشت کی په دی «نیت» حریت پیل کړه ، چی داسلامی انقلاب دتشریح، توضیح او دفاع لپاره خدمت و کړای شو او هم په هیواد کی دمطبوعاتو او ژورنالیزم دموښل شوی، گونگ ، وچ، کلیشه ئی ،بی پیغامه اوتوجیه گرانه حالت اړولو او یوه مبتکرانه ، گویا، صریح ، ژوندی او دټولنی او زمانی له اقتضاآتو سره هماهنگ او رهبری کوونکی حالت دایجاد په لار کی له نورو عواملو او گامونو سره ځان ملگری کړو، او دخیر او فلاح په دی لوی بدلون کی برخه واخلو.

« حریت» زموږ دهمدی نیت په انگیزه ۱۵ میاشتی خپره شوه، اود ۱۳۷۱ هـ ش دوړی ترمیاشتی وروسته ودریده.

د«حریت» ددریدو یو علت اقتصادی ؤ، خو داعلت بیخی پریکنده نه ؤ بلکی په دی باندی داهم ور اضافه شو، چی موږ دهیواد دننه په کارونو بوخت شولو. که څه هم دکار دشروع پر وخت مو په هیڅ توگه دحریت ددرولو تصمیم نه درلود. خو دسرگردانیو زیاتوالی او زموږ په سانحو او حادثو ځپلی او فاجعو ته سترگی په لار وطن کی چی ژوند کول دزغم، مقاومت، صبر او ارادو کوم امتحان اخلی هغه په انسان ډیر څه پریښودلای او هیرولای شی.

په افغانستان کی چی څوك ژوند کوی، خامخا به ئی دمصیبتونو او جنجالونو بلا دروازه ورټکوی او دخپل عمر گړی‌گړی‌به دیوی غموونکی پیښی په ترخه انتظار تیروی.

داهغه حالت دی چی حتماً دانسان په نشاط ، ابتکار او ذوق ځپونکی وارکوی.

دی ټولو عواملو سره لاسونه ور کړل او « حریت » ئی و دروله، موږ دامنو چی د« حریت» دتگلاری ، محتوی او دیزاین په برخه کی دډیرو زیاتو گوتنیونو ځای ؤ، خو زموږ دډیرو باذوقو، پوهو او نظر خاوندو دوستانو په قضاوت« حریت» دځانگړی ژورنالیستیکی شیوی او محتوی او مشخص دریځ له مخی یو منفرد ځای نیولی ؤ او په دریدو ئی مطبوعاتی خلا احساس شوه.

موږ دهغه احساس له مخی چی دخپل ملت دذهنی رشد او فکری ارتقا په برخه کی ئی لرو او ددی باور په بنسټ چی دیوه ژوندی ، متحد، بیدار، بامنطقه او با پرنسیپه قوم لپاره دمتعهدو، گویا ازادو ، صریحو او ژوندیو مطبوعاتو درلودل اساسی اړتیاده–

« حریت» بیا پیلوو، لوی خدای(ج) ته دنیاز لاسونه پورته کوو چی هدایت مو کړی او د اسلام، وطن او ملت په لار کی توفیق او د« حریت» دنوی ژوند په مخ کی راپورته کیدونکو گواښونو دمقابلی په جبهه کی مرسته را په برخه کړی.

«آمین»

محمد نذیر «بشارت»

# دهیواد وضعه په کوم لوري روانه ده؟

* نوی سیاسی جبهه بندی:

* حزب وحدت ولی د« حکمتیار» په څنگ کی ودرید؟

* دحل وعقد شوری څه ډول جوړه شوه؟

* استاد سیاف دڅه لپاره دحزب او جمعیت ترمنځ ظاهری بی طرفی هم ونه ساتلای شوه؟

* داسلام آباد او جلال اباد دتړون د لاسلیك انگیزی څه وې؟

* دجنرال دوستم اړیکی ولی له مسعود سره سړې شوې؟

* جنرال دوستم ته د«قلاچی» په کټه کی حکمتیار څه وویل؟

* دوستم ولی دکابل سفر لنډ کړ؟

پروسږکال نه پوهیږم داسد دڅوومی نیټی سهار ؤ، محترم «حکمتیار» دچهارآسیاب دیوی لوړی غونډی په سر له څو محدودو باډی گاردانو سره ناست ؤ، لاسونه یی ددعا لپاره پورته کړی وو او دا الفاظ یی له خولی وتل: «یا الله(ج) زموږ مجاهدینو خوستا دکلیمی او دین دلوړولو لپاره جهاد وکر، اوس هم په هماغه نیت ستا ددین ددښمنانو په خلاف په اقدام لاس پوری کوی، هغوی غواړی زموږ ملك دکمونیستانو او دهغوی دپاتی شونو له هر راز اثر او واکمنی پاك کړی، ته غیرتی ذات ئی، ته په خپل رحم دخپلی لاری د غیرتی لښکر نصرت وکړه او لوی الله(ج) ته هغوی دکمونیستانو دبقایاوو په وړاندی له ذلته وژغوری او سر لوری ور په برخه کړی.....»

د«حکمتیار» تر دی دعا لږ مخکی دچهلستون او دارالامان په استقامتونو باندی دهغه دځواکونو له خوا توند هجوم پیل شوی ؤ.

دا داسی وخت ؤچی دجنرال دوستم د ملیشی دقوت او مورال انگازی دصدام حسین دخاص گارد په څیر هره خوا خپری وی. ددوستم ملیشه ډیره مغروره وه او دوستم ځان دافغانستان« کنگ میکر» یا« پادشاه گرد » باله.

هره ورځ ئی دحزب اسلامی په سنگرو او مرکزونو بریدونه کول او دحزب دمجاهدینو او قوماندانانو دزغم جامونه یی تر غاړو ډك کړی ؤ.

دجگړی تر پیل یوه ورځ د مخه ما دحزب نامتو قوماندان او د جنوبی محاذ قوماندان انجنیر فیض محمد په لار کی ولید، ورته ومی ویل چی زما در سره کار دی سبابه دی چیری ووینم؟ هغه پداسی حال کی چی دوه واکی ټاکی مخابری ئی په لاسونو کي فعالي وي په تبسم ځواب راکړ:

« سبا خو به ما دغرونو او غونډیو په څوکو کی غواړی، دا گلم جمان ډیر مغرور شوی دی، باید یو درس ورکړو.



په دی وخت کی محترم «حکمتیار» دکمونیستانو پر خلاف دقاطعانه موضع په در لودلو او دببرك، مسعود ، دوستم، دسیکتاریستی میلان او فاشیستی سازش په وړاندی د دریدو په وجه زیات محبوبیت او ولسی ملاتړ گټلی ؤ، خو دپوځی ځواك په برخه کی ئی له چا سره دقیق اټکل نه ؤ.

عمومی ذهنیت داؤ چی حزب اسلامی ته ددومره لوئی جبهی په وړاندی مقاومت گران دی او باید په

هیڅ توگه په جگړه لاس پورې نکړي او کوم محبوبیت نی چې تر لاسه کړي، هغه زیانمن نکړي ، خو لکه چې دمخه مو اشاره و کړه، مقابل لوري خورا مغرورژ، او دحزب اسلامي دقوتونو حوصله ئې تنگه کړه، په دې علاوه دحزب اسلامي قیادت ته خپلو اطلاعاتي کانالونو ربوټونه ور کړل چې ائتلاف غواړي دکابل دکمربندونو دغځولو او پراختیا لپاره په حزب اسلامي برید وکړي، په همدې بنا حزب اسلامي پرې وار ړومبی کړ.

دا یوه درنده او خونړې جگړه وه ، دکابل خلکو ته ئې زړه دردوونکې تلفات او تاوانونه واړول که څه هم دې جگړې دحکمتیار په برخه کې دکابل دخلکو دپام وړ خوشبیني ته تاوان ورساوه، خو ددې باوجود «حکمتیار» په دې جگړه کې په ډیره هوښیارۍ یو دا ثابتوله چې دې جگړې ته ښکیل او مجبور شوی دی، بله داچې هغه خپله جگړه دکمونیستانو پر خلاف تبلیغوله ، آن تردې چې داستاد رباني له ټولو سپکو او سپورو سره به حکمتیار ویل چې استاد« رباني» زما ورور دی، موږ دکمونیستانو پایگاوې ولو، دوي دي ماته خپل ځایونه وښیي ، موږ به خپل ځواکونه دهغو له ویشتلو منع کړو.

په دې جگړه کې حزب اسلامي دټولو اټکلونو په خلاف خپل طاقت وښود له پلچرخي تر میدان پورې په یوه اوږده کرښه له یوه لوی او مجهز ائتلاف سره په جگړه بوخت ؤ، دیوه باتجربه صاحب منصب خبره ده چې ویل ئې په دومره اوږده کرښه جگړه کول، باید د «حکمتیار» مخالفین په دې پوه کړي چې هغه څومره نظامي قوت لري.

په دې جگړه کې له دې سره سره چې مقابل لوري هوائي قوه درلوده خود حزب اسلامي قوتونو پر مختگ وکړ، آن تر دې چې په ائتلاف ئې خپل شرطونه دیوه تړون په بڼه ومنل.

دې جگړې لکه چې دمخه مو وویل په اوضاع کې یوڅه بدلون راووست او دنوی سیاسي جبهه بندۍ لار ئې پرانستلې.

دبهرنیو او داخلي لوریو دې ته پام شو چې حزب اسلامي هغه قوت دی چې نه سترگي ترې پټیدای شي او نه ئې ائتلاف ماتولای شي.

تر ټولو مهمه دا چې دجنرال دوستم د قوتونو غرور مات شو، ځکه ددقیق شمیر له مخې ۲۳ سوه جنگي أفراد ئې ووژل شول. دجگړې په بهیر کې دجنرال دوستم او احمد شاه مسعود ترمنځ شدیده بې اعتمادي او اختلاف پیداشو.

ددوستم دقطعاتو مسؤلینو دوستم ته شکایت وکړ چې دوی په خطر ناکو استقامتونو کې په لومړي کرښه جنگیږي او داحمد شاه « مسعود » قطعات په اخلاص جگړه نه کوي او په دوهمه کرښه پراته دي.

دمحترم «حکمتیار» دځواکونو جگړه ایز قوت او لوړ مورال جنرال دوستم ولړزاوه.

ما یوه ورځ له محترم استاد «مزاري » نه په ډیر ټینگار او جدیت ددې توضیح وغوښتله ، چې که احمد شاه مسعود دحزب په خلاف جگړه پیل کړي، دجنرال دوستم روش او دریځ به څه ډول وي. وروسته تردې چې دهغه په سر سرې ځوابونو مې قناعت ونکړ په تبسم سره ئې راته وویل:« تاسې ولې له جنرال دوستم نه دومره تشویش لرئ، تاسې پروسږ هغه ته خپل زور ور ښودلی او هغه ته هم دحزب اسلامي دقوتونو جنگي حوصله او مورال معلوم شوی دی، لومړی خو شاید هغه دحزب اسلامي پرضد محاربې ته تر داخلیدو دمخه ډیر زیات سوچ وکړي او که بیا دا ونکړي او په جگړه کې دگډون غلطي وکړي، نو حزب اسلامي ته به مشکلات ایجاد کړي، مگر دجگړې دنتیجې معادله نشي بدلولای. »

همداسې پروسږ چې تر ژمي لږ دمخه جنرال دوستم سعودي عربستان ته تللی ؤ او بیا له هغه ځایه پټ پاکستان ته راغی.په اسلام آباد کې ئې محترم مجددي ته وویل چې« زه له تا سره ولاړ یم خو له «حکمتیار» سره به مې نه در گیروی...

**له استاد رباني او مسعود سره دمجددي صاحب دمناسباتو خرابي:**

دا داسې وخت ؤ چې دمحترم «حکمتیار» او محترم «مجددی» تر منځ اړیکې ښې شوې، آن تر دې چې مخکې له دې چې دمحترم مجددي دریاست موده پوره شي دمحترم «حکمتیار» له خوا پیغام ورکړل شوی ؤ چې که کولای شي خپل وخت تمدید کړي، دې مخالفت نه کوي دمجددي صاحب او حکمتیار صاحب اړیکې ورو، ورو سره ډیرې نږدې کیدې، مجددي صاحب له رباني صاحب او محترم مسعود سره کلکه عقده پیدا کړې وه. له هغوی نه مجددي صاحب دخپل خپگان دلیل دا وښود چې دی ور سره د «حکمتیار» په خلاف په ډیر جدیت ودرید او په خپلو ډیرو څه ئې داوو لگاوه آن تر دې چې دحکمتیار په مخالفت کې په وار وار تر دوی وړاندې ؤ. خو دهغوی چال چلن ور سره داو چې مسعود صاحب دصلاحیت ساحه او

حتی دهستوګنې او دفتر چاپیریال پری تنګ کړی وَ او ربانی صاحب ئی په تلوسه دریاست دمودی شیبی شمیرلی، آن تر دی چی کله په کابل کی دا آوازی را پورته شوی چی مجددی صاحب غواړی خپله دوره اوږده کړی نو مسعود صاحب دیوچا په وسیله پیغام ور ولیږه چی « دتمدید خوبونه پرېږده ، چی کله دی وخت پوره شو له غوږه به دی نیسم، او له دفتره به دی باسم. »

واضح ده چی داسی برخورد دهرچا لپاره دردوونکی دی، په تیره دمجددی صاحب په څیر یوه عاطفی او جذباتی شخصیت لپاره.

محترم مسعود له مجددی صاحب سره رښتیا هم بده وضعه کوله، له یو شخصیت له څرنګوالی را ولاړیدی، خو دی تشویش هم اخیستی وَ چی مبادا مجددی صاحب جنرال دوستم ترشاودروی او ایران هم په وحدت ګوند فشار راوړی چی په جدیت دهغه تر شا ودریږی او په دی توګه هغه « مسعود » له یوه خطرناك چلنج سره مخامخ کړی.

دهمدی تشویش په بنا وُ چی « مسعود » صاحب دمجددی صاحب دسپرلی الوتکه چی له پاکستانه راتله دکابل په هوائی ډګر وویشتله.

محترم مسعود فکر کاوه چی یو به دمجددی صاحب له احتمالی خطره ځان وژغوری او بل به دالوتکی ویشتلو پړه په حکمتیار صاحب ور واچوی.

تر پولی مخالفت ئی ورسره درلود.

مجددی صاحب به علنی ویل چی « دی دپوځی اقدام وس نلری، خو هغه قوتونه چی ځواکمن دی باید دربانی او مسعود په خلاف نظامی عمل وکړی. » دده اشاره «حکمتیار» صاحب او جنرال دوستم ته وه.

«مجددی» صاحب د ربانی صاحب او محترم مسعود بی وفائی او بی پاسی سخت دردولی وُ، جذباتی او عاطفی مجددی ته ګرانه وه چی خپل احساسات کنترول کړی، هغه ځان داسی ګانه چی یوه لویه جفا ور سره شوی ده او دابه ئی هر ځای څرګندوله. پروسږ تر ژمی لږ دمخه په کابل کی دقیادی شوری غونډي کیدلی د«حکمتیار» صاحب په ځای پکی



یا الله ته د خپلې لاري غیرتي لښکر ته نصرت ورکړه، لوي الله ته هغوي دکمونیستانو دبقایاوو په وړاندي له ذلته وژغوري!

څو لومړیو ورځو پرته محترم مجددی په کابل کي تریخ عمر درلود، هغه په کرار کرار پوهیده چی دمسعود په ړانده او احساساتی ملاتړ ئی لویه اشتباه کړی او اوس دخپلی اشتباه کفاره ورکوی، دمسعود دحرکتونو زیاتی برخی دهغه دروانی مزاج او

دی ټولو جریاناتو دمحترم مجددی غوسه له قابو کیدو وایستله او په کلکه ئی دربانی صاحب او محترم مسعود مخالفت ته ملا وتړله، ان تردی چی له هغه «حکمتیار» سره ئی لاس یوکړچی دکلونو، کلونو ددښمنی

دهغه داجرائیه شوری غړی محترم ارغندیوال ګډون کاوه، یوه ورځ ارغندیوال په غونډه کی دمحترم حکمتیار طرحه او دریځ تشریح کړ، محترم مجددی تر ټولو دمخه وویل « داخو ټولی معقولی خبری دی، په دی

طرحه هیڅوك اعتراض نشی کولای...
دهغه تردی خبری وروسته« ربانی»
صاحب مخ ور واړاو او ورته ئی و ویل
« حضرت صاحب لږ احتیاط کوه، ته د
حزبیانو ددوستی تجربه نلری، خو زه
ئی لرم، داد چا دوستان کیدای نشی.»

مجددی صاحب سملاسی ځواب
ورکړ« ستا له دوستی می څه تر لاسه
کړل داخوار لس کاله دحکمتیار په
خلاف در سره ولاړ وم، له ما سره دی
څه وکړل، خو حکمتیار په دی څو
میاشتو کی زما ډیری خبری ومنلی،
هغه یو شهامت لری یوه مشخصه خبره
او صریح دریځ لری. «ستا خو څوك په
هو او نه، نه پوهیږی...»

**دشمال له ائتلاف څخه داستاد مزاري وتل او بیزاري:**

دا داسی وخت ؤ چی داهل حل و
عقد شوری په جوړیدو موافقه شوی وه
او دهغی دجوړیدو دپروسی په
میکانیزم کار روان ؤ.

ددی کار په جریان کی نظار شوری
اوجمعیت درسوا رشوت او تقلب
بندوبست وکړ.

دځو تنظیمونو مسؤلین سره
کیناستل او دربانی صاحب او مسعود
له چال چلند ئی شدید تشویش حرگند
کړ.

دلته داخبره دیادونی وړ ده چی په
دی وخت کی دوحدت گوند او نظار
شوری ترمنځ شدیده بی باوری رامنځ
ته شوی وه.

زما په نظر ددی بی باوری تر شا
څهٔ عوامل وو.

لومړی: داچی محترم احمد شاه«
مسعود» د خپلو ائتلافی جهادی
تنظیمونو په وړاندی توهین آمیزه
روش غوره کړ، دمسعود پلان داسی ؤ
چی باید پوځی قوت اوصلاحیت ټول
ده ته انتقال شي او جهادی ائتلافی
ملگری ئی یواځی په حکومتی
چوکیو او امتیازاتو ځان بسیا وگنی.

محترم مسعود تر ډیره حده په دی کی
بریالی هم شو، مثلاً مولوی صاحب
محمد نبی ( محمدی) ښه دحساب وړ
جهادی وسلوال طاقت وو، مگر باید
مولوی صاحب دا ومنی چی هغه ته
هیح ندی ور پاتی، دهغه پاتی ټولی
جبهی عملاً دنظار شوري او محترم
مسعود په لمن کی لویدلی دی،
اکمالوی یی او دسوق او اداری
صلاحیت ئی هم دده په لاس کی دی،
یواځی جبهی نه بلکی دلومړی لیکی
ټول اشخاص ئی دمسعود صاحب له
خوا گمارل کیږی او د حرکت انقلاب
اسلامی او محمدی صاحب کسان نه
بلکی دنظار شوری غړی دی. همداسی
په ځینو برخو کی داستاد سیاف
صاحب، خالص صاحب او گیلانی
صاحب هم درواخله، که څه هم ددی
تنظیمونو ځینو جبهو له حکمتیار
صاحب او حزب اسلامی سره ځانونه
هماهنگ کړی دی.

خو محترم عبد العلی مزاری چی
دښی سیاسی ځیرکتیا او تیز هوشی
ترځنگ ، یو ډول زړور توب او غرور
هم لری، دمسعود دپاس یاد شوی
نیت او نقشی په مخ کی ودرید، څوك
چی محترم مزاری له نږدی وگوری او
دهغه نظریات و گوری نو دابه ومنی
چی هغه ته گرانه ده چی دمحترم «
مسعود » په خیر سړی رحم او کرم ته
ځان حواله کړی.

مزاری غواړی خپل سیاسی او
پوځی قوت تثبیت کړی او دیوه مسلم
واقعیت په توگه تبارز وکړی او بیا له
همدی موقعیت نه دخپلی خبری او حق
په باب دراکړی ور کړی میز ته ولاړ
شی.

دوهم: لکه مخکی مو وویل داسد
-سنبلی جگړی محترم حکمتیار دیوه
داسی واقعیت او فکتور په توگه
ښکاره کړ چی ټولو هوښیارومغزونو
ئی له صحنی دایستو خبری دخوبونو
په دنیا کی گرځیدل گڼل، البته

یواځی مسعود صاحب چی زیات
اماتور مزاجه دی او تبلیغاتو تری
سراب ډوله تصویر کښلی، دحزب
اسلامی په باب خپل سوچ نه ؤ بدل
کړی.

له یوی خوا حزب اسلامی دیوه
مضبوط ځواك په توگه تبارز وکړ له
بلی خوا مزاری په دی پوه شوی ؤ چی
دژبی، قوم، سمت او نژاد په بنسټ
جوړ ائتلاف په اوضاع کنترول نشی تر
لاسه کولای، بیا په تیره چی
دادپښتنو په خیر دیوه لوی او ثابت
اکثریت په خلاف وی.

سره له دی چی « مزاری» دشمال
درامنځ ته شوی ائتلاف په ایجاد او
تشکیل کي مهمه ونډه درلودله خو
او س هغه دخپلی تجربی په ناکاموالی
پوهیدلی ؤ.

په مزاری صاحب باندی دایران
دواکمنو پرله پسی فشارؤچی له ربانی
او مسعود سره خپل ائتلاف پای ته ونه
رسوی او پرینږدی چی هغه اهدا ف
سبوتاژ شی دکومو لپاره چی دشمال
ائتلاف رامنځ ته شوی و.

ایران خپل دبهرنیو چارو وزارت
مرستیال « بروجردی» څو ځله دهمدی
لپاره په اوږده سفر افغانستان ته
راولیږه، حتی یوځل ئی خارجه وزیر
داکتر ولایتی کابل ته راغئ، خو
محترم مزاری دافغانستان وضعه،

جوړښت او واقعیتونه تشریح کول او له خپلې موضع نه او ښتوته نه چمتو کیده.

ایرانیانو مزاری دمرستو په بندیدو او دده په وړاندې په وحدت گوند کې قیادی «الترناتیف» ته په تبارز ورکولو تهدید کړ، خو ده په خپله همدې خبره ټینگار کاوه چې په افغانستان کې دپښتنو دماتولو او محرومولو نقشه که هر څومره زوررور طاقت جوړه کړي، دتطبیق وړ نه ده او موږ دخپل موجودیت او سیاسی بقا لپاره له پښتنو سره ښو اړیکو ته اړتیالرو، محترم مزاری ایرانی مسؤلین په دې پوه کول چې دلبنان تجربه په افغانستان کې ازمویل او عملی کول ډیره غټه اشتباه ده او هزاروو ته لویې او تباه کوونکې فاجعې راولاړولای



شي.

همدا ټکی ماته په یوه بله بڼه محترم مزاری داسې ووایه« دخارجیانو مشکل دادی چې د افغانستان له وضعې، ځانګړتیا وو او واقعیتونو سم تحلیل او برداشت نلري، هغوی چې بل چیری کومه تجربه کوی، یائې وینی، غواړی کټ مټ ئې په افغانستان کې کاپی کړي.»

په همدې بنا مزاری صاحب له«حکمتیار» صاحب سره دخپلو اړیکو ښه کول شروع کړل او دیوی موافقې دلاسلیک پړاو ته ورسیدل.

البته یو وضاحت لازم دی ، هغه داچې کله موږ له «حکمتیار» سره دمزاری داړیکو دښه کولو یو علت له پښتنو سره دهزاره وو ددښمنی نه کولو اړتیاګڼو، ددې معنی دانه ده چې گنی «حکمتیار» یواځې دپښتنو قاید او نماینده دی بلکې واقعیت دادی چې ربانی صاحب اومسعود دپښتنو په سیمو کې هیڅ راز نفوذ او اعتبار نلري او حکمتیار صاحب ددې برعکس په نورو برسیره دپښتنو په اکثریت سیمو کې قوت لري.

له محترم «حکمتیار» سره دوحدت گوند ددریدو په یاد شویو علتوبرسیره یو بل شی هم نقش لری. هغه دادی چې محترم مزاری په ځینو خصلتونو کې محترم حکمتیار ته ورته دی، په دې خصلتونو کې صراحت ، قاطعیت زړورتوب ، استقامت او په خپله خبره دریدل او واقعبینانه سیاسی فهم او استدلال دی.

دسولې دهیأت یوه غړی محترم مزمل چې کله مزاری صاحب دلومړي ځل لپاره په دریمه کارته کې ولید، له لیدنې څخه ئې تر راستنیدو وروسته زما ددې پوښتنې په ځواب کې چې مزاری مو څه ډول تحلیل کړ مزمل صاحب وویل:« ډیر حاضر ځوابه او صریح سړی دی، بس له مزاری سره چې ناست ئې «حکمتیار» به وینې »

د«حکمتیار» او «مزاری» ائتلاف له ځینو مهمو ازموینښتونو راووت او تر اوسه هماغسې ټینگ معلومیږي ، داچې دا ازموینښتونه کوم دي، په دې به په ځانته مقاله کې خبری وکړو.

مزاری صاحب سره له دې چې ځان دیوه موثر او با دسپلینه او سازمان یافته گوند رهبرگڼی او دځانګړی غرور او اعتماد په نفس خاوند دی، خو «حکمتیار» صاحب ته ډیر زیات احترام کوی او په درنښت ئې یادوی.

له حزب اسلامی سره دوحدت گوند دائتلاف په سر دنوموړي گوند درهبری کدر په مینځ کې اختلاف وو او ځینی شخصیتونه ئې دربانی صاحب له خوا تطمیع او لمسیدل.

مگر دوخت په تیریدو په بیلا بیلو علتونو دمزاری صاحب موضع ټینگیدله او اوس ئې دخپل گوند په منځ کې دبلامتنازع قیادت ستیج ته دختلو ټولې پوړی وهلې دی.

محترم مزاری ربانی صاحب دیوه بی ارادې او بی صلاحیته سړی په توگه یادوی، خوله مسعود صاحب نه خپله کرکه نشی پټولای، سږکال په پسرلی کې ماتری پوښتنه وکړه چې ایا دامنې چې تاسې پروسږ دشمال دائتلاف یو فعال کردار وی، هغه ځواب راکړ چې« زه ستاسې تر خبری هم وړاندې ځم یعنې داچې دشمال حرکت اصلاً پیل کړی مادی، ما هغه درژیم دنسکورولو یوه موثره لار وبلله، بیلا بیل قوماندانان می راوبلل،او په جنرال دوستم می هم کار وکړ، چې راوگرځی او دخپل ولس او هیواد په خدمت کې واقع شي، استاد فرید او په شمال کې دحزب اسلامی ځینو قوماندانانو ته می هم بلنه ور کړله، استاد فرید ځواب رانکړ، له حزب اسلامی څخه نسیم « مهدی» او مولوی عبادی له موږ سره یو ځای شول، مسعود چې ډیر چالاک سړی دی، زموږ بلنه ډیره توده استقبال کره.....»

دمزاری صاحب تردې توضیحاتو وروسته ما تری بله پوښتنه وکړه چې« تاسې چې ځان دشمال دلویې« هیرو» او مرکزی لوبغاړی گڼې، نوبیا له میدانه څه وړ وایستل شوی؟

هغه راته په ځواب کې وویل چې: « ددې دوه علته وو، یو زموږ صداقت او بل دمسعود چل او دوکه، په دې مفهوم چې موږ له شماله په جهادی رنگ کې حرکت شروع کړ، او په دې فکر وو چې په هماغه جریان به وړاندې ځو، خو مسعود چې دوکه،

دروغ او چل یې بیخي ذاتي خصیصه ده، دشمال په حرکت برسیره په کابل کې یوبل جریان هم مخې ته اچولی ؤ، هغه جریان له نبي عظیمي، محمود بریالی ، فرید مزدك، وکیل او نورو پرچمیانو سره ؤ...»

له مسعود سره دمزاري داختلاف دشدت دښودلو لپاره زه یوبل مثال هم وړاندې کوم ، دامثال دادی چې په یوه ملاقات کې مزاري صاحب ماته وویل «پروسږ چې داستاد سیاف او موږ ترمنځ کومه جګړه پیل شوه ، دهمغې اصلي محرك احمد شاه مسعود ؤ.»

**داهل حل او عقد شورې او جنرال دوستم ته داستاد رباني پیغام:**

خبره مې اورېده کړه ، زه په دې غږېدم چې څو تنظیمونو داهل حل و عقد شورې په جوړولو کې د « محترم رباني» او مسعود صاحب له خوا دلایحې نقضولو، رشوت ورکولو او تقلب کارولوروشونو دغوره کولو په لیدو سره دیوې موافقې په ترڅ کې دحل او عقد شورې انتخابات تحریم کړل.

په ذکر شویو تنظیمونوکې ، حزب اسلامي، وحدت اسلامي، جبهه نجات ملي، محاذ ملي، حرکت انقلاب اسلامي او دجنرال دوستم جنبش شامل وو، خو محترم « رباني» او مسعود په ډېره بې پروائي خپل کار ته ادامه ورکړه ، په ډېره شرموونکې بڼه ئې دحل او عقد شورې جوړېدل اعلان کړل.

« رباني» صاحب یواځې په جنرال دوستم پسې شو، چې هغه په خپله خواکې و درولای شي، دهمدې لپاره ئې دموسی توانا په مشرۍ له ډېرو پیسو سره مزار ته هیأت ولیږه - دې هیأت ته « رباني» صاحب ویلي وو چې« تاسې به جنرال دوستم ته وایاست چې ماته له خپل زوی صلاح الدین څخه کم نه ښکارېږی ته باید متوجه

نې چې دافغانستان په څو سوه کلن تاریخ کې لومړی ځل داموقع راغلې چې قدرت دشمال او اقلیتونو په لاس کې دی- باید داموقع ضایع نکړو، ته چې له ماکوم امتیازات غواړې زه به دهغه په ورکولو کې له هیڅ ممکن اقدام نه مخ وانهړوم. اوس چې شمال او تاجکو او ازبکو دنجیب درژیم په رانسکورولو کوم ویاړ تر لاسه کړی دی، «حکمتیار» غواړي دجنوب او پښتنو له خوا په کابل باندې دقبضې کولو له لارې هغه برباد کړي او زموږ او تاسې په باب دا ذهنیت ایجاد کړي چې دوی دقیادت او حکومت کفایت او ظرفیت نلري ، یواځې پښتانه دافغانستان دقیادت او زمامدارۍ شایستګي لري. او په دې توګه تاجك او ازبك بیرته دپخواني محکومیت حالت ته ولاړ شي.»

دوستم ته درباني صاحب په پیغام کې موږ هیڅ نه دي زیات کړي، ددې دثبوت لپاره په نورو برسیره دوه بنه پاخه دلیلونه شته ، یو داچې محترم استاد «فرید» ددې خبرې ژوندی شاهددی چې دده دصدارت په وخت کې استاد رباني څو ځله دمیلمستیا په نامه ور غوښتی خو له دې امله چې له استاد فرید سره به دحزب اسلامي نور غړي هم وو، دځه ویلو جرئت نې نشوای کولای، او وخت به یې په عادي ګپ ،شپ ، تیراوه ، هلته له تلونکو کسانو سره به پوښتنه پیدا کیده چې په دې کتنه کې خو هیڅ داسې خبره مطرح نشوله چې په راتلودې و ارځې. دا کار څو ځله تکرار شوی.

بالاخره ئې یوه ورځ محترم استاد «فرید» یوې کوټې ته ګوښه کړی او ورته ویلي یې دي چې ګوره خدای یو چانس راوستلی دی، زه جمهور رئیس یم، ته صدر اعظم ئې او مسعود ددفاع وزیر دی، په دې توګه ټول قدرت له تاجکو سره دی، دحکمتیار لار دجګړو او ماجراوو لار ده ، دهغه په لار له پلو

ایښودو ډډه وکړه. دیوه مستقل شخصیت او قوت په توګه عمل وکړه، ترڅو چې موږ یو ته به صدر اعظم ئې.

دوهم دلیل دادی چې جنرال دوستم ته د« رباني صاحب» دهیأت تر تلو وروسته دا خبره زمزمه شوه چې جنرال دوستم دخپل مخکینې تعهد او موضع په خلاف چمتو شوی چې د حل و عقد شورې ته خپل استاځی ولیږي.

په همدې وخت کې دسید کیان زوی منصور نادري له مزارنه دمخابرې په واسطه په بغلان کې خپلو قوماندانانو ته وویل چې دده له خوا ټاکل شوی استاځی دې دحل اوعقد په شورې کې ګډون ته ځانونه تیار کړي.

دا داسې وخت ؤ چې دنظار شورې او وحدت ګوند ترمنځ د« افشار، چنداول، باغ بالا، خوشحالخان او جمال مینې» په ساحو کې له فاجعو ډکې خونړۍ جګړې شوې وې، وحدت ګوند ته دسر او مال درونډ تاوان اوښتی وو ، او پاس یادې شوې برخې یې له لاسه ور کړې وې.

داجګړه خورا وحشتناکه وه په دې جنګ کې نږدې ؤ چې مزاري دعلوم اجتماعي په ودانۍ کې ژوندی و

نیسي، هغه د خپلو زیاتو افرادو دلاسه ورکولو او مهمو سنګرونو او موقعیتونو په بایللو سره ډېر احساساتي شوی و او دعلوم اجتماعي

ودانۍ پرېښودو ته تیار نه ؤ، چې کله دنظار شورۍ قوتونه ور ته بېخي رانږدې شول. دمزاري دافرادو یوه دیرش کسیز گروپ په فشار هغه و ایست، ددې ایستو په جریان کې له نوموړي گروپ څخه څو تنه مړه او ټپیان شول.



له دې خبرو زما مطلب دادی چې جنرال دوستم چې دمزاري کلك متحد ؤ په یوه سخت وخت کې دحل وعقد په شورۍ کې گډون ته خپل تیاری ښودلی ؤ دی کار محترم مزاري حیران او زیات خپه کړ.

دهمدې لپاره ئې له جنرال دوستم سره مخابروي تماس ونیو، ددوی ترمنځ چې کومې خبرې تبادله شوې دهغو لنډ مفهوم داسې و« ترعلیك سلیك وروسته»

.... محترم مزاري : زه خبر شوم چې تاسې له رباني سره په حل وعقد شورا کې دگډون موافقه کړې دلته ورونه ستاسې په دې تصمیم ډېر تشویش او خپگان کوي، مونږ اوتاسې خو دیوبل متحدین یو، زه نه پوهیږم چې تاسې کوم مصلحت په پام کې نیولی دی، زمونږ حیرانتیا په دې لا زیاتیږي چې نظار شورۍ زمونږ له خلکو سره داسې جنایات وکړل چې په یادولونې انسانیت شرمیږي، که تاسې څه وضاحت کوي، زه یې اورم.

جنرال دوستم : دلته استاد صاحب یو هیأت رالیږلی ؤ هغوی زمونږ دټولو غوښتنو دمنلو خبرې کولې، مادهغوی پیشنهادونه واوریدل، بیا مې ټول قوماندانان او مسؤل ورونه را غونډ کړل تقریباً یوه شپه او یوه ورځ شوری وه.

په پای کې پریکړه وشوه چې یو هیأت دانجنیر نسیم « مهدی» په مشرۍ کابل ته ولاړ شي، هلته وضعه مطالعه کړي ، نسیم به حتماً له تاسې سره گوري له نږدې به په خبره پوه شي.

داستاد صاحب په پیشنهادونو کې



مونږ ډېر معقولیت او اخلاص ، احساس کړ، خوبیا هم جنبش او حزب وحدت دیو بل متحد دی، همیشه ئې یوه موضعگیري وه او وي به ، او په گډه به د..... اقلیتي ملیتونو له حقوقو څخه دفاع کوو.

محترم مزاري : داسمه ده چې زه به دانجنیر مهدی سره خبرې وکړم ، خو زمونږ خواهش دادی چې تاسې دحل و عقد شورۍ لپاره داستاځو رالیږل وځنډوی.

دلته حکمتیار صاحب ډېرې معقولې طرحې او نظریات لري باید له هغه سره هم خبرې وشي.

که داسې وشي چې هغه قوتونه چې په صحنه کې عملاً نقش او حضور لري، او دجگړې بار ئې په اوږو دی، له یوبل سره کېني، یوې نتیجې او موافقې ته ورسیږي اوخدای په دې هیواد سوله او کراري راولي.

هغه کسان چې ځانونه رهبران گڼي او په مسایلو کې دخیل نه دي، چې کراري وي راځي کابل ته سیاست کوي، خو چې مشکلات واقع شي بیا ځي بهرته.

مشخصاً مې مطلب دادی چې حزب اسلامي، جنبش، جمعیت یاشورای نظار او حزب وحدت، یوې موافقې ته ورسیږي بیا به څوك وي چې ددوی دپریکړې مخې ته ودریږي؟!.

جنرال دوستم: سمه ده له انجنیر مهدي سره په دې برخه کې وغږیږي، خو چې داسې ونشي چې شمال او زمونږ اوتاسې محرومو ملیتونو رژیم رانسکور کړ او یو لوی افتخار یې

وګاته ، اوس ځینې خلك هغه برباد کړي او بیا دا تبلیغات وکړي چې یواځې پلانی قوم حکومت کولای شي او هغه او دغه ملیتونه ددې کفایت نلري، خدای یوه موقع را وستلې ده چې مونږ او تاسې خپل قومونه له ستمه وژغورو، ځکه مونږ اوس په خپلو کې سره ونښلو بیرته به زمونږ په ملیتونو هغه پخوانۍ محرومیت او محکومیت راځي، داستاد صاحب پیشنهادونه همداسې وو.

محترم مزاري: ستانظر صحیح دی خو داهم باید په پام کې ونیسو چې دشمال جنوب او قومونو دمسایلو په بنسټ دهیواد بحران نه حل کیږي، باید یوه معقوله تجربه مخې ته واچوو. دجنرال دوستم او مزاري خبرې اوږدې دي خو مونږ یې پاس برخه ددې لپاره را واخستله چې داځرګنده شي چې « رباني» دموسی توانا په لاس جنرال دوستم ته څه پیغام لیږلی ؤ.

**حل او عقد شورۍ او داستاد سیاف دریځ:**

اصلي خبره مو داکوله چې « رباني » صاحب دحل وعقد شورې دګډون په برخه کې ډیره دلچسپي یواځې دجنرال دوستم له ګډون سره درلوده.

شورې په ډیره شرمناکه بڼه دایره شوه او په خندوونکې رنګ یې رباني

صاحب دهیواد دجمهور رئیس په توګه اعلان کړ، او دې ته ورته نوري

پریکړې ئې وکړې، محترم استاد« سیاف» په ځانګړې علاقه په شورې کې ګډون وکړ او په افتتاحیه برخه کې ئې وینا وکړه.

داچې محترم استاد ولې دحزب او جمعیت ترمنځ دظاهري بې طرفي حالت ونه ساتلای شوای، بیلا بیل عوامل دي.

ترکومه چې مونږ فکر کوو یو عامل دادې چې محترم استاد سیاف صاحب که څه هم دفکري موضعګیرۍ په لحاظ تر رباني صاحب نه حکمتیار صاحب ته ور لنږ دی او له محترم مسعود سره خو ځرګند فکري وحدت او هماهنګي بیخې لري نه، مګر په روحي لحاظ رباني صاحب ته ور لنږ دی، محترم استاد حتماً فکر کوي چې دفعال، پر تلاشه، ذهین ، باابتکاره او د افراط تر حده په ځان مطمئن او متکي «حکمتیار» صاحب ترڅنګ دخپل فعال او متبارز موجودیت ساتل ورته ګران دي او خامخا به د «حکمتیار» تر شعاع لاندې راځي.

خو ددې پر عکس رباني صاحب داداري ، تصمیم او نورو کمښتونو او محترم مسعود دفکري لوړتې خلاپه وجه محترم استاد سیاف صاحب ته زیاته اړتیا لري او په دې توګه دهغو تر اړخه خپل شخصیت او نقش ژوندی ساتلای شي.

پر دې علاوه دحل و عقد شورې دجوړیدو په مهال داستاد دقوتونو او حزب دیوه نامتو قوماندان وګرجنرال امان الله خوږمن ترمنځ یوه تونده جګړه پیښه شوه.

بله خبره داده چې سره له دې چې «حکمتیار» صاحب له استاد سره کلکه مینه در لودله ، خو په څو وروستیو کلو کې په کرار کرار دغې مینې خپل ځای ژورې بې باورۍ ته پریښود. دابې باوري دپیښور په ترون کې داستاد سیاف صاحب په فعال نقش ډیره اوج ته ورسیدله ، په تیره چې ددې

معاهدې تر لاسلیك وروسته داخبره ډیره خپره شوه چې استاد سیاف صاحب ویلي چې په دې تړون کې زما یو مهم هدف داو چې په اصطلاح «حکمتیار» ذلیل کړم.

ددوی ترمنځ دبې باورۍ اوج هغه وخت را څرګند شو چې کله پروسږ په منځ کې محترم استاد چهار آسیاب ته ولاړ او هلته ور سره حکمتیار صاحب دځینو دریمګړیو ترمخ ډیرې جدي او صریح خبرې وکړې چې ته « استاد سیاف صاحب» بې طرفه نه یې ، بلکې عملاً له نظار شورې سره ولاړ یې ، ته په هیڅ توګه دریمګړې کیدای نشې، تا تل زما دکمزورۍ کولو او تجرید هڅه کړې ده.

واقعیت دادې چې محترم استاد په ډیروزیاتو مسایلو کې بې ځوابه ؤ ، آن تردې چې ور سره راغلیو ملګرو دېږې مخ ورواړاو.

زه فکر کوم چې د حکمتیار صاحب له دې ځرګندونو او جدي چال چلن وروسته په دې پوهیدلې چې نور زه ځان بې طرفه نشم ثابتولای او پر ما باندې دیوې خوا بې باوري اوج ته رسیدلې ده نو په همدې وجه له نظار شورې سره ودرید.

اغلباً بله مسئله داهم وه چې محترم مسعود متأسفانه په لاپو شاپو معتاد دی، هغه ځینې لورې په دې ګومان کړې وو چې تاسې یوه نیمه قانوني شورې او فضا جوړه کړي ، په پوځي لحاظ دحکمتیار کار زه ور ختموم.

رباني صاحب چه له خپلې تولې کم جرئتي او بې زړه توبه دحل وعقد شورې په پای کې کومه اطمیناني او له بلند پروازۍ ډکه وینا وکړه علت ئې دمسعود صاحب همدا پاس یاد شوی کاذب واوورکول ؤ، دا هم نشي رد کیدای چې محترم استاد سیاف صاحب هم همدې دروغجن واړ تر تاثیر لاندې راوستي وي او دیوه غلط امید او اټکل په اسره یې په خپل فکري او

سیاسی کردار باندی داو وهلو ته تن ور کړی وي.

په حل و عقد شوری کی داستاد « سیاف» صاحب ګڼون یوه نتیجه داوه چی محترم استاد ربانی او مسعود ئی په هغه مهال جنرال دوستم ته له زیاتو امتیازاتو ورکولو نه منع کړل او په دی وجه دحل و عقد شوری په برخه کی کابل ته ددوستم راغلی هیأت، بی موافقی مزار ته ستون شو.

دحل وعقد شوری تر پریکړی وروسته ربانی صاحب ځان دټول افغانستان رهبر وګاڼه او دده ددولت په خلاف جګړی ته ئی بغاوت وویل، هغه وویل چی تردی وروسته که زموږ له مخالفینو سره جګړه شی دسولی او منځګړیتوب هیأتونو ته دکار او ماموریت ځای نشته.

دربانی صاحب په څیر یوه شخصیت له خولی چی په وار خطا توب ، نرم مزاجی اوبی زړه توب مشهور دی ددی خبرو وتل دډیر غور وړ دی، ددی علت لکه چی دمخه مو اشاره وکړه دمسعود صاحب پوچ، بی بنسټه او په لاپو شاپو ولاړ داډ چی خپلو متحدینو او محترم ربانی ته ئی ور کړی و.

**دمسعود او بابه جان دخوبونو تعبیر:**

دحل و عقد شوری تر غونډو څو ورځی وروسته یو مازدیګر دنظار شوری اوجمعیت یو لوړ رتبه هیأت چهار آسیاب ته داغفال لپاره راغي، اوله حکمتیار صاحب نه ئی په حکومت کی دبرخی اخیستو لپاره دهغه دشرایطو او امتیازاتو توضیح وغوښتله ، څو سهار وختی ئی دکابل په ختیځ کی دمسعود په مستقیمه قومانده یرغل پیل کړ.

له دی امله چی له یوی خوا دحزب اسلامی قوتونو تیاری نه درلود او له بل لوری یرغل له داسی استقامت او ساحی پیل شوی وُ چی دحزب اسلامی خواکونو دهغه استقامت او ساحی له قوماندان یعنی مولوی صدیق الله سره «دمتقابل نه تیری» تړون درلود.

په ړومبی ورځ نظار شوری او بابه جان ښه پرمختګ وکړ، ربانی صاحب او نورو انډیوالانو ته یی دمسعود خوبونه رښتیا معلوم شول.

په ټول کابل کی آوازه شوه چی په دوو ، دریو ورځو کی دحکمتیار کیسه ور ختمیږی ، په مختلفو ځایونو کی پر حزب باندی دبریدونو هنګامی جوړی شولی، خو مولوی نصر الله « منصور» پیشقدمی وکړه ، اوبی له دی چی دپکتیا شرایط په پام کی



ونیسی او دحالاتو نتیجی ته یوڅه صبر وکړی دمحترم مسعود داکټونو« کاپی کاری» یی شروع کړه او په زرمت کی یی دحزب اسلامی په مجاهدینو برید وکړ چی دجبهی دقوماندان په ګډون ئی پنځه تنه شهیدان کړل.

په هر حال دکابل په ختیز کی په لومړی ورځ جګړه دمسعود په زیاته ګټه وه خو په سبا چی لمر را خوت، وضعه په بدلیدو شوه،محترم «حکمتیار» لومړی ورځ ډیره مصروفه تیره کړه، خپل قوتونه یی منظم کړل، ماتری دلومړی ورځی په مازدیګر کی دجګړی دوضعیت پوښتنه وکړه هغه په ډیره مطمئنه لهجه ځواب راکړ چی « سبا مازدیګر به و ګوری چی دبابه جان او مسعود دخوبونو تعبیر څه دول کیږی.»

حکمتیار صاحب داخبره په داسی حال کی کوله چی د« شنی» دغونډی په څیر مهم مرکزونه او داوراګان B M -21 او لویو ټانکونو په ګډون مهم وسایل یی له لاسه ورکړی وو او د« لته بند- چهار آسیاب لار پری بنده شوی وه. او ذهنیت داوُ چی دمسعود او بابه جان ځواکونه به ډیر ژر دچهار آسیاب په لوری پرمختګ پیل کړی.

په کابل کی دپاکستان دسفیر ښاغلی امیر عثمان خبره ده چی وائی « زه دجګړی په دوهم سهار استاد ربانی ته ورغلم او دجګړی په برخه کی می ورته اندیښنه څرګنده کړه، استاد ربانی په ډیر اطمینان راته وویل چی بس یو دوه ورځی صبر وکړی. مسئله حل کیږی،

په دوهم سهار دحزب اسلامی قوتونو په تونده جګړه شروع وکړه ترمازدیګره ئی په ختیز استقامت کی خپل ټول مرکزونه او وسایل بیرته تر لاسه کړل او دچهلستون په لوری کی ئی پرمختګ وکړ. ساعت په ساعت دجګړی بهیر د«حکمتیار» په ګټه او دمسعود او بابه جان په تاوان روان وُ په دی جنګ کی بابه جان اوه سوه افراد له لاسه ورکړل ، دژمی په یخه شپله کی دی جګړی دردوونکی پیښی رامنځ ته کړی چی انصافاً ئی مسؤل مسعود وُ، څو ورځی وروسته حزب اسلامی چهلستون په بشپړه توګه ونیو، دنظار شوری مقاومت په ختمیدو وُ او «حکمتیار» یوځل بیا دخپل مضبوط ځواک او اوسپنیزی ارادی په درلودو خلك حیرانول.

محترم مسعود ، ربانی صاحب ته وویل چی بابه جان د زیاتو تلفاتو په کیدو بیخی ټکان خوړلی او زما قوتونه نور دجګړی دادامی وس په بشپړه توګه له لاسه ورکوی. دمسعود هغو قوتونو چی مجاهدین وو د خپلو مجاهدورونو په خلاف تباه کنی جګړی

شوق نه درلود.

دمسعود حالت دی ته ورسید چی دخپلو افرادو دمورال لپاره به ئی دا خبرونه خپرول چی دادی تن او سبا دجنرال دوستم قطعات ددوی په گټه جگړی ته داخلیږی.

**قاضي حسین احمد او جنرال حمید گل ته دسولي خواست:**

ربانی صاحب دپاکستان سفیر امیر عثمان ته وویل چی داوربندماموریت پیل کړی همدارنگه ربانی صاحب فکر وکړ چی قاضی حسین احمد او جنرال حمید گل له حکمتیار سره دنږدی اړیکو ددرلودلو په وجه اغیزمن نقش لوبولای شی.

هغوی دواړه یی راوغوښتل ، قاضی حسین احمد علاقه درلوده چی په خپل ماموریت کی بریالی شی، ځکه پروسږ چی په کابل کی بدلون راغلی دافغانستان دحالاتو په باب دهغه ددریغ پر خلاف زیات تبلیغات شوی وو، ډیره عجیبه داوه چی په کلونو کلونو قاضی حسین احمد له جهاد سره نږدی اړیکی او مرستی درلودی ، خو پروسږ وضعه داسی وه چی قاضی دافغانستان دوضعی په برخه کی دیوی بدی څیری په توگه معرفی کیده، قاضی حسین احمد دځان لپاره ښه موقع گڼله چی په دی پسی شوی تبلیغات دروغ ثابت کړی او وښیی چی دادی بالاخره دهغوی نقشونه له بن بست سره مخامخ شوی او ده ته مراجعه کیږی.

په محترم استاد « ربانی» تنگه ورځ راغلی وه، هغه په قاضی حسین احمد پسی ټول کړی تبلیغات او څو ورځی مخکی جلال آباد ته دراتلو له امله دهغه په خلاف صادره کړی اعلامیه هیر کړی وو.

په هر حال اوربند تامین شو،او دبحران داساسی حل په طرحو کار پیل شو، تر ډیرو تلو راتلو وروسته قاضی حسین احمد مایوس پاکستان ته ولاړ.

خو جنرال حمید گل په کابل کی پاتی شو محترم مسعود دجنرال حمید گل له ذهانت ، پوهی او سیاسی بصیرته زیات متاثر دی.

دلته جالبه خبره داده چی دټولو مایوسیو په منځ کی یواځی جنرال حمیدگل وُ چی نسبتاً امیدوار ښکاریده ، ترهغه یوه ورځ وروسته چی حکمتیار صاحب له چهار آسیابه جلال اباد ته ولاړ او پاکستان ته ئی تگ لایقینی نه وُ ، جنرال حمید گل په وزیر اکبر خان کی په خپل هستوگنځی کی موږ ته وویل چی ده له مسعودنه وپوښتل چی « ایا ته چمتو یی چی «حکمتیار» دیوه باصلاحیته صدر اعظم په توگه ومنی، هغه ځواب راکړ چی هو، زه دیته تیار یم.»

بله داچی جنرال حمید گل تردی مخکی چی رهبران په اسلام آبادکی راغونډ شی، تقریباً دیوی داسی معاهدی دلاسلیک له قوی احتماله خبری کولی چی وروسته د اسلام آباد تړون په نامه رامنځ ته شوله.

داسلام آباد تړون دډیرو ستومانوونکو خبرو اترو په نتیجه کی لاسلیک شو، دخبرو اترو یوه اساسی ستونزه داوه چی دمذاکراتو بهیر به لږ نوی اوبدله بڼه ومونده، ربانی صاحب به په ټپه ولاړوُ او له مسعود سره به ئی دمشوری خبره راولاړه کړه، آن تر دی چی یوه شپه ورته دپاکستان دهغه وخت صدر اعظم نواز شریف دټولو په مخ کی وویل چی پکار ده داستاد دمشکل دحل لپاره مسعود اسلام آباد ته راوغواړو اویله شپه چي دحکمتیار صاحب لخوا په یوه وخت کی پرله پسی دڅو طرحوله وړاندی کولو وروسته دربانی صاحب حالت داسی شو چی د نظر ورکولو جرئت ورځخه صلب وُ بالاخره نواز شریف ورته وویل چی « خیر استاده یوڅه خو ووایه.» داسلام اباد تړون دمذاکراتو په وروستی شپه ناوخته پداسی حال کی لاسلیک شو چی نور ټول مایوس شوی وو، او نواز شریف په غونډه کی وویل: ددی لپاره چی یوه دختیځ پزه جوړه شی باید اعلامیه صادره شی چی خبری اتری گټوری وی، او په راتلونکی کی به بیا دایریږی. په همدی وخت کی یوځل بیا دیوی طرحی دبڼی هغه رنگ تعدیل پیشنهاد شو، چی مشرانو پری لاسلیک وکړ.

دلته یوه خبره بله را یاده شوه چی له اصلی موضوع سره ارتباط نلری، خو ماتی یادونه لازمی و گڼله، هغه داده چی زموږدتنظیمونو دکدری فقر دا حالت دی چی کله حزب اسلامی او جمعیت اسلامی یو بو استاځی ددی لپاره وټاکه چی تر لاسلیک دمخه دتړون محتوی ته وروستی بڼه ورکړی ، نو دخپل کار تر پای ته رسولو وروسته دحکمتیار صاحب نماینده په ډیر افتخار ویل چی « زه په معاهده کی ددی ټکی دزیاتولو سره شدید مخالف وم چی صدراعظم دی دکابینی په جوړولو کی ددولت په رئیس برسیره له نورو مشرانو سره هم مشوره وکړی.» په داسی حال کی چی دادحکمتیار صاحب په گټه وه ځکه دددولت درئیس صلاحیت راکمیده او په دی صلاحیت نور مشران هم ور گډیدل چی محترم «حکمتیار» صاحب

پکی زیات دوستان درلودل.

درباني صاحب استاځی بیا په ډېره خوشحالی دا خبره کوله چی ماپه ډېر



ټینگار دحکمتیار په استاځی داخبره ومنله چی صدراعظم به دکابینی په جوړیدو کی ددولت په رئیس برسیره له نورو مشرانو سره هم مشوره کوی، په دواړو دهغو دوه کسانو ټوکه شوی وه چی وایی یوه ژرند گړی له یو چا یوسیر مزد غوښت، هغه ورته ویل چی پنځه چارکه درکوم، په همدی کی یی سره جگړه وه په هر حال دایوه معترضه جمله وه.

داسلام آباد تړون یو لوی سیاسی بدلون ؤ او «حکمتیار» صاحب دیوی ستری سیاسی سوبی گټندوی وگڼل شو. خو مسعود صاحب لوی تاوان وکړ ځکه هغه له خبرو اترو او تړون نه تر ټولو متنازع فیه اوبی نقشه سړی راووت، حال داچی دهغه له نقش او قوته څوك سترگی نشی پټولای.

**مسعود دشویو تاکتیکونو په لټه کی:**

دی مسئلی مسعود ډیر خپه کړ او استاد رباني ته زیات په غوسه ؤ، مسعود پوهیده چی اوس دی دیوه نسبتاً با اعتباره تړون په وراندی ودرید او حکمتیار یوقانونی ملاتړ تر لاسه کړ.

مسعود په نظار شوری او ببرك کارمل گروپ کی له خپلو ځانگړیو انډیوالانو سره په مشوره بوخت و او په خپلو غونډو کی به ئی رباني صاحب ته سپکی سپوری ویلی.

مسعود داسلام اباد تړون تر لاسلیك څو ورځی وروسته په یوه مطبوعاتی کنفرانس کی وویل چی دی داسلام اباد تړون منی او له «حکمتیار» سره هر راز مرستی ته چمتو دی. خو دادهغه دزړه خبره نه وه ، بلکی غوښتل ئی چی رباني تر فشار لاندی راولی. دمسعود تر پاس څرگندونی وروسته محترم رباني او دهغه نږدی انډیوالانو داسلام آباد تړون په باب خپلی شك پیداکوونکی خبری تیزی کړی او دمسعود ځای او بیځایه ستاینو ته یی زور ورکړ.

دیادولو وړ ده چی درباني صاحب په خلاف داتاکتیك څو ځله ازمویل شوی دی، څو کاله دمخه د رباني او محترم مسعود اړیکی خرابی شوی، مسعود ددی لپاره چی محترم رباني تهدید کړی، له حکمتیار صاحب سره تماس ونیو او له هغه سره یی دهماهنگی او پیوستون پیشنهاد وکړ، او پیښور ته یی له حکمتیار صاحب سره دخبرو لپاره هیأت ولیږه، متقابلتاً دحزب اسلامی هیأت پنجشیرته ولاړ، دی جریان استاد رباني ته ټکان ورکړ او سملاسی له یوی لویی قافلی سره دمسعود لیدو ته ورغی او دهغه ټول شرایط یی ومنل ددی څو ورځو مخکی خبره ده چی کله مسعود احساس کړه چی رباني غواړی له هغه جلا یو نظامی قوت ولری او دبدخشان خلکو ته زیات رشد او صلاحیت ور کړی او په دی توگه ددوی دواړو ترمنځ داختلاف خبری تودی شوی، نو مسعود په کابل کی دصدارت له لومړی مرستیال انجنیر قطب الدین « هلال» سره تماس ونیو او دری ځله ئی ور سره مفصلی لیدنی وکړی، په دی لیدنو کی دهغه دخبرو زیاتره برخه له استاد رباني نه په شکایت ولاړی وی ، ویل کیږی چی مسعود به په یوه مناسبه طریقه داجریان رباني صاحب ته رساوه.

سره له دی چی له محترم هلال سره په کتنو کی مسعود صاحب ځان ډیر تود او جدی ښود خو تر دریو ملاقاتونو وروسته یی بی دلیله خبری اتری قطع کړی ، قوي نظر دادی چی په همدی دریو ملاقاتونو سره مسعود خپل هدف چی په رباني صاحب باندی فشار راوړل و تر لاسه کړ.

**دیروان کاپیسا تحول دحزب متقابل اقدام او دجلال آباد تړون:**

داسلام آباد دتړون دلاسلیك چی څه وخت تیر شو، او دا بیخی څرگنده شوه چی استاد رباني او مسعود دمعاهدی تطبیق ته غاړه نه ږدی ، نو محترم «حکمتیار» ته دځینو کسانو مشوره داوه چی اوس تاته ددی ښه فرصت دی چی په پوځی حرکت او فشار لاس پوری کړی ، ته دخپل حرکت تر شا یوه قانونی پشتوانه لری، هر چاته ویلای شی چی زه دټولوتنظیمونو په موافقه صدر اعظم ټاکل شوی یم، باید کابل ته ننوځم ، څوك مي چی مخی ته دریږی ، هغوی بلواگراو جگړه ماران دی، باید مقابله یی وکړم.

خو حکمتیار صاحب داخبره ونه منله، تردی چی مسعود پیشقدم شو او په پروان او کاپیسا کی یي دافرادو داخیستلو له لاری اقدام شروع کړ.

بلی خواته دشیخ اصف محسنی صاحب په ابتکار دجلال اباد دغونډی بندوبست وشو.

استاد رباني فکرکاوه چی دجلال اباد په غونډه کی به اکثریت جوړ کړای شی اومحسنی صاحب ، استاد سیاف صاحب، خالص صاحب او گیلانی صاحب درایو په ملگری کولو به داسلام آباد په تړون کی «حکمتیار» ته ورکړل شوی، امتیازات له هغه بیرته واخلی.

دجلال آباد خبری روانی وی چی په کاپیسا او پروان کی له «حکمتیار»

سره ډېر بد خیانت وشو او دواړه
ولایتونه مسعود ونیول، دمسعود
ځواکونه دسروبي سرته راورسیدل، او
هره لحظه ددې خطر ؤ چې سروبي هم
لاندې کړي او دڅهار اسیاب او شرقي
ولایتونو رابطه بالکل سره قطع کړي.
دې وضعې د حکمتیار لپاره یو بد
ترین بحراني او اعصاب شکن حالت
رامنځ ته کړ، او د مذاکراتو دمیز په
سرئې دهغه لاسونه تش کړل.
زما دیوه دوست خبره ده چې په
هغو ورځو کې یې وویل « که
«حکمتیار» له دې بحران نه هم بریالی
ووځي، بیا دې په افغانستان کې
څوک دهغه دماتولو سوچونه نه
کوي.»
رباني صاحب چې کله ددې دوو
ولایتونو دسقوط خبر واورید،
سمدلاسه دغرور غونډې ته وخوت او
وئې ویل چې « دفاع، خارجه او داخله
وزارتونه به داسلام آباد تړون ته په
پخواني حال وي، دنورو وزیرانو
دټاکنې لپاره به صدر اعظم له هغه
پارلمان څخه منظوري اخلي چې دحل
وعقد شورۍ له منځه جوړشوی » او که
څوک په نوموړي شورۍ اعتراض لري،
ستري محکمې ته دې مراجعه
وکړي. » ماچې درباني صاحب دا له
کبره ډکه خبره واوریدله ، یوځل بیا
پوه شوم چې اصلاً رباني صاحب
وارن، بې تصمیمه او وار خطاسړي دی
خو دا صفتونه یې داسې ښودل شوي
چې ګنې هغه معتدل، ارام او داستدلال
او خبرو له لارې دقضایاوو دحل پلوی
دی.
دیوه اهل نظر، باتجربه او هوښیار
شخصیت دداسې وخت خبره ده چې له
«حکمتیار» سره یې درقابت او
مخالفت شوق کړی ؤ. هغه ویلي ؤ چې
دا«حکمتیار» نه دی « بحران یار »
دی مګر متاسفانه رباني صاحب په
تیرو څوارلس کلونو کې په دې نه ؤ
پوهیدلی «حکمتیار» په جلال اباد کې
دخپلې هستوګنې په کوټه کې لویه
مخابره ځای په ځای کړه، ددې په ځای
چې وارخطا شي په اقدام ئې فکر وکړ،
څوک چې «حکمتیار» له نږدې
وپیژني نو داخامخا ورته معلومیږي
چې حکمتیارپه ښه موقعیت او
یانورمال حالت کې وي، زیات
اغفالیدای شي، خو چې څومره پرې
فشار وي او دبحران منځ اوتل ته ور
کیوزي، هغومره زیات فعالیږي او په
زیات اغیزمنتوب او چټکۍ عمل
او دجلال اباد دتړون لاسلیك ته یې لار
اواره کړه.
دجلال اباد تړون د تطبیق پروسې
که څه هم داسلام اباد له هغې سره
توپیر وموند په دې معنی چې دجلال
اباد دمعاهدې دعملي کولو عملیه
یوڅه اوږده شوه او په دې علاوه څه
ګامونه هم پورته شول.
خو دمسعود پلان دیوه داسې
حالت ساتل ؤ چې« نه جګړه وي او نه
سوله» هغه او دکمو نیستانو قوتونه

هیواد ته د مسعود او کمونستانو دائتلاف سوغات !!

کولای شي،
«حکمتیار» لومړی دسروبي په خوا
دمسعود دځواکونو دپرمختګ
دمخنیوي لپاره په نغلو کې مضبوطه
دفاعي کرښه جوړه کړه، بیایې دکابل
په لویدیزه برخه کې دنظار شورۍ ،
بابه جان او جنرال مومن دنقشو په
وړاندې داقدام قومانده ورکړه. دحزب
اسلامي ځواکونو ډیر ژر دوه فرقې او
څو غونډونه ونیول،او ددارالامان ساحه
ئې تر خپل کنټرول لاندې راوسته،
دحزب اسلامي دې سوبو دپروان او
کاپیسا سقوط ترشعاع لاندې راووست،
دې ته په هیڅ توګه چمتو نه وو چې
«حکمتیار» ته دصدارت چارې وسپارل
شي.
اساساً هغوی غوښتل دپیسو په
ویش ځان غښتلی کړي او په مناسبه
موقع کې په جګړه لاس پورې کړي.
ددې لپاره هغوی څو ځله هڅې
وکړې ډېر جدي هاند ئې هغه وخت
وکړ چې دچنګاښ په میاشت کې یې
جنرال دوستم کابل ته راوغوښت ، او له
هغه سره یې ځینې مهم تعهدات وکړل
که څه هم دا رپوټونه هم ترلاسه کیدل
چې استاد رباني دوستم ددې لپاره

کابل ته را غوښتنی چی ترکیبی ته دده دسفر په وخت کی ددولت دریاست کفیل وی او دمسعود لخوا کوم اقدام ونشی، مګر دقیقه خبره دامعلومیده چی محترم استاد ربانی او مسعود غوښتل، هغه له ځان سره په جګړه کی ګیون ته راضی کړی، جنرال دوستم ته زیات امتیاز منل کیده خو له حزب اسلامی سره دهغه دجګړی پروسړنی تجربی دی دوه زړی کړی ؤ.

**له حکمتیار سره د جنرال دوستم ملاقات:**

په دی وخت کی جنرال دوستم له حکمتیار صاحب سره دکتو ټینګه غوښتنه وکړه ، دهغه غوښتنه څو ځله رد شوه، خو بالاخره محترم «حکمتیار» موافقه وکړه او هغه ته ئی وویل چی باید په بنی حصار کی دحزب اسلامی یوی قرار ګاه ته راشی، د«حکمتیار» او جنرال دوستم کتنه دچنګابن په شلمه نیټه دمازدیګر په پاو کم پنځو بجو په قلاچه کی دحزب په یوه قرار ګاه کی پیل شوه.

له جنرال دوستم سره څو تنه مولویان او افسران وو دوستم په ډیر درناوی له «حکمتیار» صاحب سره روغبړ وکړ، ترناستی وروسته دوستم خپل یوه مولوی ته اشاره وکړه چی څو آیتونه تلاوت کړی. تر هغه وروسته ئی وویل: « انجنیر صاحب ډیر خوشحاله یم چی تاوینم، زما له پخوا هیله وه چی له تاسی سره ووینم... زمونږ هیله داده چی خدای(ج) په دی هیواد کی یوه کراری راولی.

زما د تاسی نه دا ګیله ده چی په ماپسی تبلیغات وشول چی داکمونیست دی،دنجیب رژیم له بقایاوو څخه دي، پداسی حال کی چی انجنیر صاحب تاڅو واری ویلی چی موږ ددولت په داخل کی خپل افراد لرو، باید زه دی هم له هغوافرادو څخه ګڼلای وای، مونږ چی کله په شمال کی حرکت کاوه، له ماسره داویره وه چی مونږ پدی اقدام تر ملامتی او فشار لاندی رانشو، یوه ورځ زه او مولوی عبادی په یوه زاړه جومات کی کیناستو، ماورته وویل چی د«بیاڼ سیوان» طرحه روانه ده ، داسی ونشی چی هغه او بین المللی ووایې چی ددوی اقدام زمونږ تلاش تخریب کړ، مولوی عبادی ځواب راکړ چی که مونږ قوت ولرو، بیا به څوك زمونږ پر خلاف خبری نه کوی. ستاسی دیوه لیك مسئله وه، ماحضرت صاحب ته هسی وروښود خو هغه بی انصافه په ټولو اخبارونو کی چاپ کړ... »

جنرال دوستم دخپلو خبرو په مینځ کی دحکمتیار صاحب استازی جریرپه وار وار مخاطب کړ، او ورته ویل یې چی زه له انجنیر صاحب سره یوازی ګورم، دجریر له خوا ځواب ورکول کیده چی ستاسی دځانته کتنی انتظام

زه یوځل بیا وایم چی، باید دولس دادفقر، جګړی ویرانی ، بی کوری او پریشانی پراو ژر تر ژره پای ته ورسیږی....نن شاید دهغه او دغه هیواد سفیر او نماینده زما، ستا او یابل لیدو ته راشی، خو هغه چی زمونږ دهیواد داپدحالت ګوری حتماً یی مونږ په نظرونو کی حقیر راځو.

شوی دی.

ددوستم تر خبرو وروسته حکمتیار صاحب خپلی خبری داسی وکړی:« مونږ مسلمان یو، او پدی باور لرو چی اسلام زمونږ دوحدت ضامن دی، او دایمان پیوند، دملتونو دوحدت او قوت بنیاد، دی زمونږ دښمنانو ونه کړای شول چی په اوږده موده کی زمونږولس دسمت، مذهب، نژاد او قوم پر بنسټ وویشی. مونږ یوازی داسلام په اساس خپل ملت واحد ساتلای شو.مونږ ټول وروڼه یو، اصلاً داقلیت او اکثریت شمال او جنوب مسئله مطرح نده، موږ مسلمانان یو، او پدی اعتقاد لرو چی زمونږ خالق یو دی ټول له یوه پلار او موره یو، تعصبات حرام دی، څوك چی تعصب عنوانوی هغه دخدای او رسول دښمن دی، پیغمبر (ص)او صحابه وو(رض) ټوله دنیا یوه ګڼله، دهغوي شهیدان همدا مخامخ په شهدای صالحین کی خښ دی، لکه چی حضرت طارق ویل:« هر ملك ملك ماست که ملك خدای ماست»باید دورونو په څیر دژوند کولو لپاره اسلام ته پناه یوسو، دجګړو لار ټولو وآزمویله، له هغو نه یوازی زمونږ ملت ته تاوان ورسید او زمونږ دملت دښمنانو ته ګټه، هغه دښمنان چی نه غواړی ددوی په ټخنګ کی یو ځواکمن افغانستان جوړ شی، باید پدی و پوهیږوچی پنځلس کاله جګړه بس ده، زمونږ دریغ دادی چی پخوانی تجربی تکرار نشی، نور دتل لپاره دکودتا او دوینی تویولو له لاری داقتدار دترلاسه کولو روش پای ته ورسیږی،اسلام حکم کوی چی باید ملت آزاد پریښودل شی، چی هرڅوك یی خوښ وی ، هغه ته دقیادت امانت وسپاری، زه تاسی ته بلنه درکوم چي راځي په دي لاره کي ګام پورته کړو چی ملت مو ماضی وښبی، پدی لار کی کار وکړو، زمونږ نظر دادی چی ولس دچا غلام نه وی، بلکه داحکومت دی چی باید دولس خادم وی.... هغه چی دملت لپاره جنګیدل ملت به یی هیڅ کله هیر نکړی، خو څوك چی دملت پر خلاف جنګیدلی هغوی بدنام دی او ملت تری کرکه کوی، زه یوځل بیا وایم چی، باید دولس دادفقر، جګړی ویرانی ، بی کوری او پریشانی پراو ژر تر ژره پای ته ورسیږی....نن شاید دهغه او دغه هیواد سفیر او نماینده زما، ستا او یابل لیدو ته راشی، خو هغه چی زمونږ دهیواد داپدحالت ګوری حتماً یی مونږ په نظرونو کی حقیر راځو، که غواړو

چی آزاد ، سرلوړی او په ځان متکی وو، نو پوازینی لار داده چې هیواد ، په معقوله بڼه له روانی مرحلی نه وباسو.

دحکمتیار صاحب ترڅرګندونو وروسته جنرال دوستم وویل چې زه ستا له ټولو نظریاتو سره موافق یم او مونږ په یوه بڼه احساس درڅیم دنسکورولو اقدام کړی، که څه هم ځینو غوښتل چې له مونږنه دتوپ تخته جوړه کړی ، خو مونږ چاته ددې اجازه نده ورکړې. تردې وروسته دمحترم حکمتیار په امامت دمازدیګر لمونځ وشو او ترهغه وروسته ددوی داوړو یو ساعته ځانګړی کتنه پیل شوه.

ترکومه چې ددی کتنی په اغیزه او نتیجه پوری اړه لری په دقیقه توګه څه ویل ګران دی، خو دیوه شی زه شاهد وم چې جنرال دوستم دمحترم «حکمتیار» تر ډیر زیات تاثیر لاندی راغلی او داخبره ماته په کابل کی یوه جنرال هم وکړه ماله هغه جنرال نه پوښتنه وکړه چې ستا په نظر دوستم دحکمتیار صاحب له ملاقات نه څه تأثر اخیستی و، هغه په ځواب کی راته وویل چې هغه وخت چې جنرال دوستم په کابل کی ؤ دهغه دهوایي قواؤ قوماندان ډګرجنرال هلال الدین به زیاتره وخت زما میلمستون ته راته.

ماتری ډیوښتل چی دحکمتیار او دوستم کتنه څه ډول وه، جنرال هلال الدین ځواب راکړ چی یوه مسئله خو داوه چې جنرال دوستم ډیر دحکمتیار تر تاثیر لاندی راغلی، او اصلاً یې دیوه سیاسی شخصیت په توګه برخورد ونکړای شوای بلکی داسی ؤ لکه چې کوم سرباز دخپل افسر په وړاندې ناست وی.

دحکمتیار جرئت اومنطق هغه بیخی ګونګ کړ او یواځی اوریدونکی و، دوهم داچې «حکمتیار» په ډیر قوت ، تهاجم او صراحت خپل نظریات بیان کړل، دهغه خبری داسی ته وی لکه چې دیوه جلانظر خاوند سیاسی او قدرتمند سړی په وړاندی غریبړی بلکی داسی ؤ لکه خپل کوم حزبی مسؤل ته چې په بی پرواۍ او بی تکلفی خبری کوی. ترملاقات وروسته یې په ارګ کی خپلو ملګرو وویل چې «حکمتیار» په دی روحیه نه دی چې له تا سره ائتلاف وکړی، بلکی روحیه یی داده چی ته دهغه قیادت و منی او پسی ولاړ شی.....»

ماته دپاس جنرال په تحلیل کی پوره وزن معلومیږی او وروسته جریاناتو هم دا وښودله چې جنرال دوستم د«حکمتیار» صاحب له شخصیت اونظریاتو همدا تعبیر کړی دی.

دلته دیادونی.یوه خبره داده چې جنرال دوستم له کابله په ناڅاپی توګه ولاړ، څو ورځی داسی ویل کیده چې هغه بیرته ژرراځی، خوبیا رانه غئ.

مونږ ته په باغ بالا هوټل کی محترم استاد سیاف صاحب وویل چې دوستم یو ناڅاپه روان شو، هغه هم داسی چې لومړی ئی له هوائی ډګره بله الوتکه والوزوله او بیا وروسته دده دسورلی الوتکه والوتله، ددې علت داو چې دوستم ته ویل شوی ؤ چې هوائی میدان ته په تړدی غونډیو باندی دسیاف له خوا اوه ستینګرونه ځای په ځای شوی دی او غواړی ستا الوتکه را وغورځوی....»

ما، چې تردی څو ورځی وروسته دمحترم استاد خبره « مزاری» صاحب ته وکړه هغه وویل چې« هو» داکار شوی ؤ ، دوستم ته خبر ورسید او دخپل سفر پای ئی لنډ او ناڅاپی کړ....»

ترکومه چې دهیواد دوضعی په لوری پوری اړه لری، متأسفانه هغه یو ویروونکی او وحشتناک منظر بنیی، خو ددی ټولو په منځ کی ځینی مثبتی نبنی هم را ښکاره کیږی ، چې که خدای (ج) له هغو سره خپل رحمت او نصرت ملګری کړی، بی ځایه نه ده چې وواېو دروانی ترورمی زړه به انشاء الله ځیری کیږی او دیوه ښه او کرار افغانستان په لوری به زمونږ دمحروم ملت محرومی ارزوګانی دناامیدی له سیلی بچیږی.

د اسلام آباد دتړون نه وروسته خبری کنفرانس منظر.




محمد نذیر (بشارت)

څوموده مخکې دنظار شورى رئیس محترم احمد شاه مسعودد« الوطن العربی» خپرونې له خبریال سره په جبل السراج کې مرکه کړې وه دامرکه داکتوبر په لسمه نیټه په نوموړې « نشریه » کې خپره شوه.

موږ دبل هدف لپاره نه بلکې ددې مسؤلیت د په ځای کولو په خاطر پر هغې تبصره کوو چې زموږ ولس پر موږ حق لري چې ترخپله وسه ورته واقعیتونه وسپړو او له هغوی سره په دې لار کې مرسته وکړو، چې جعل، پوچوالی ، دروغ او قلابیت پرې څوك دربتیا، کمال، ظرفیت او کفایت په نامه تیر نکړي.

رابه شو دمسعود صاحب مرکې ته.

ښاغلی مسعود دخبریال دیوې پوښتنې په ځواب کې وایي چې:

« اوس پوځي وضعه بدله شوې ده او ددې دوه علته دي. لومړی داچې جنرال دوستم زموږ په څنګ کې دریدلی او زموږ ور سره هیڅ مشکل نه دی پاتې او نور به هغه په هر حالت له موږ سره وي دوهم داچې حزب وحدت له موږ سره توافق کړی چې په کابل کې به دحزب اسلامي په ګټه په جګړه کې نه داخلیږي.»

دلته څو خبرې دي، لومړۍ داچې محترم احمد شاه مسعود په اصطلاح دده په ګټه دپوځي وضعې دبدلون لپاره دغسې کوم علت نشي په ګوته کولای چې هغه دده او دده دخپل ګوند ایجاد وي. هغه هیڅ داسې شي نلري چې د خپل پوځي حالت دښه والي او ځواکمنتوب دښودلو لپاره پرې استناد وکړي.

سره له دې چې متاسفانه مسعود صاحب په لاپو وهلو او بې ځایه دعوه کې خپل کمونیست ملګرې هم شاته پریښي دي خو بیا هم ددې جرئت نشي کولای چې دوضعې دښې ښودو لپاره خپل کوم تولید او پرمختګ یاد کړای شي، باید له دې ښه واضح اټکل وشي چې هغه څومره دشکست خوړنې او بایلود احساس کوي.

محترم مسعود ددې لپاره چې دځان په ګټه دوضعې دبدلون دثابتولو لپاره دخپل قوت او پرمختګ څه نلري، ټول ترکیز په نورو عواملو کوي، او هغه دخپل حالت دښه ښودلو لپاره استعمالوي، په دې معنی چې وائي جنرال دوستم دده په خواکې ولاړ دی او حزب وحدت ورسره له حزب سره دتشریك مساعی نه کولو موافقه کړې ده.

بله خبره داده چې که جنرال دوستم دبل چاپه څنګ کې دریږي او یا ورسره تفاهم کوي استاد رباني صاحب او« مسعود» صاحب پرې اعتراض کوي ، هغوی یو وخت تبلیغات کول چې حزب اسلامي جنرال دوستم په خپل څنګ کې درولی دی، حال داچې داسې وُهم نه، خو اوس دوی په خپله خواکې دجنرال دوستم په دریدو ویاړي او هغه دپوځي حالت لوی بدلون ګڼي.

ترکومه چې دوحدت ګوند مسئله مطرح ده نو په هغې کې هم احمد شاه« مسعود» صاحب په همدې مرکه کې دتضاداتو ښکار شوی دی.

له یوې خوا ددې لپاره چې دخپلې نظامي وضعې دښې ښودلو لپاره لکه مخکې مو چې وویل په خپل حالت او وضعیت استناد نشي کولای، مجبور دی چې دځان مضبوط څرګندولو په خاطر په دروغو دحزب وحدت موافقه یاده کړي او له بل لوري ددې لپاره چې حزب، وحدت په عامو اذهانو کې محکوم کړي او دځینو عربي او غربي حلقو توجه ځانته ور جلبه کړي، غواړي حزب وحدت دایران لاسپوڅی، او له هغه سره خپله جګړه له ایران سره جنګ وښیي. «هلته چې وایي دده جګړه، له حزب وحدت سره نه بلکې له ایران سره ده »

دمحترم مسعود بل تناقض دادی چې په یوه وخت ، یو واري له حزب وحدت سره تفاهم عنوانوي، بل واري بیا وائي چې « درغیرانو په نسبت له قوماندانانو سره معامله او تفاهم ښه نتیجه لري، څکه هغوی دجګړې په ډګر کې حضور او وجود لري، له دې یوځل بیا ښه معلومیږي چې محترم « مسعود» اصلاً دتفاهم او پرنسیپ په سیاست او تګلاره باور نلري، بلکې دهغه دمزاج او کرکټر اساسي تکې ، توطیه ، سازش، دوکه، او معامله ګری جوړوي.

محترم احمد شاه « مسعود» له قوماندانانو سره دتفاهم مثال کاپیسا او پروان یادوي، خو موږ وایو چې کاشکې « مسعود» دبګرام نمونه یاده کړې وای، چیرې چې ده دخپل سیاسي متحد محترم استاد سیاف په قوماندان ناڅاپي برید وکړ ، وسایل یې ترې چور کړل او ګڼ شمیر افراد یې ور ووژل.

په همدې مرکه کې احمد شاه « مسعود» دکابل په ختیځ پغمان او سروبي کې انکشافاتو او جریاناتو ته امید څرګند کړی دی «شاید دمسعود دامرکه دسروبي له پیښو مخکې شوي وي» .

محترم « مسعود» چې په هغه استقامت څومره سرمایه ګذاري کړې وه هغه ټوله اوبو یوړله او ضایع شوه.

په سروبي کې یې ځینې مرکزونه استخدام کړل او دشپیتمی فرقې په نامه یې یوه فرقه جوړه کړه، په هغې یې ډیر لګښت وکړ خو هغه هرڅه یې ختم شول او په سروبي کې دهغه پلویانو ته دیوه پل ایښودو ځای هم ور پاتې نشو.

همدارنګه« مسعود» غوښتل په هغه استقامت کې دخپلوتوطیو او رشوتونو په وجه په حزب لار بنده کړي ، خو نتیجه یې چپه راووتله، په دې معنی چې تر وروستیو پیښو وروسته له ننګرهاره تر کابله ټوله

له صدر اعظمی سره موافق دی» مخکې تردې چې « مسعود» د الوطن العربی خبریال ته دگیلانی صاحب له صدراعظم کیدو سره خپله موافقه وښیئی، داموضوع روښانه شوې وه ، داسې چې امریکا داستاد« ربانی» او مسعود دمرستی او رسمیت پیژندنی دغوښتنو په ځواب کې دا شرط ایښی چې باید د عظمی صدارت ، بهرنیو چارو وزارت، دفاع وزارت او لوی درستیز چوکې دواشنگټن دخوښې کسانو ته وسپارلی شی، امریکا یانو دعظمیٰ صدارت لپاره د «گیلانی صاحب» او دفاع وزارت لپاره احمد شاه مسعود نوم اخیستی دی.

خوداچې داپیشنهاد نه بلکې دیکتیشن تر اوسه نه دی عملی شوی، علت ئې داستاد « ربانی» داموضع ده چې وائی فعلاً دهغه دتطبیق لپاره زمینه نده برابره.

نودگیلانی صاحب له ټاکنی سره د «مسعود» موافقه اصلاً دامریکا دحکم د تعمیل په خاطر او ددې لپاره ده چې دده په گومان دامریکا دملاتړ په چورت ئې ددفاع وزارت کرسی چې دده بیچاره د ژوند تر ټولو لوی آرمان معلومیږی، تضمین او ریزرفیږی. داچې محترم گیلانی په دې برخه کې خپلې خومره کمې وینی او مسعود او ربانی ته دامریکا ددیکتیشن په باب څه ډول فکر کوی څو په خصوصی مجلسونو کې چې دی دمسعود له شخصیته دخپل تحلیل او برداشت دبیان لپاره کوم الفاظ کاروی، هغه موږ په پوره امانتداری را اخلو.

دگیلانی صاحب الفاظ دادی:« احمد شاه مسعود یووچ مغزی نظامی سړی دی، دعقدی، تعصب ، پوچتوب او بی مورده خود خواهی احساس ډیر پری غالب دی، مسعود په هرچا بی اعتماده دی، ډیر کم ظرف او لنډپاریٰ دی، ډیری لاپې کول ئې بیخې دژوند مهم عادت دی او زما په نظر په افغانستان کې له ډیر بې ایندی او بدایندی سړو څخه یو مسعود دی.

محترم احمد شاه مسعود دمرکې په یوه بله برخه کې وایی چې» موږ ددې لپاره حزب وحدت ته امتیاز ورکوو چې له حزب اسلامی سره یو ځای نشی».

مسعود ته پکار وه چې ووائی حزب وحدت ته ددی لپاره امتیاز ورکوی چې هغه زموږ دولس یوه برخه ده، ددی هیواد زامن دی، یو واقعیت دی او غواړی داحزابو مرسته او اعتماد راجلب کړی، دلته ټول جهادی احزاب حق لری. باید څوك له خپله حقه محروم نکړای شی، باید ټول جهادی احزاب دیوه اوبل په څنگ کی ودریږی او په گډه په دی وطن کی سوله تامین شی او د ولس دخدمت لپاره گامونه پورته شی. خو گورو چې مسعود خپل

دگیلانی صاحب الفاظ دادی:« احمد شاه مسعود یووچ مغزی نظامی سړیٌ دی، دعقدی، تعصب ، پوچتوب او بی مورده خود خواهی احساس ډیر پری غالب دی، مسعود په هرچا بی اعتماده دی، ډیر کم ظرف او لنډپاری دی، ډیری لاپې کول ئې بیخې دژوند مهم عادت دی او زما په نظر په افغانستان کی له ډیر بی ایندی او بدایندی سړو څخه یو مسعود دی.

درونی رنځ او نیمگرتیا نشی مهار کولای، ټول علیا حقیقتونه او لوړ مصلحتونه هیروی، او وائی چې حزب وحدت ته په امتیاز ورکولو کی دده لوی هدف دادی چې دحزب اسلامی په څنگ کی ونه دریږی.

ښاغلی « مسعود» په یوه بل ځای کی وائی چې « کمونیستان اوس خطرنه دی، مهمې چوکۍ دهغوی په لاس کی نه دی، دهغوی اکثریت زموږ پیروی کوی، زموږ اړیکی ور سره ښې دی، البته که بهرنی هیوادونه ور سره مرسته وکړی، بیا خطر دی.»

مسعود چې کله دا خبره کوی چې مهم پوستونه له کمونیستانو سره نه دی، نو موږ وایو چې ښاغلی مسعود صاحب چې عربی خبریال ته دامسایل مطرح کول حتماً ئې دا فکر کاوه چې خدای خبر دا مرکه به هم مې دعربی نړۍ په کوم کوټ کې خپریږی، څوك ئې راپسې سپینوی، اوکنه فکر نه کوو چې تومره درسوائی ترحده دی دروغ ووائی او له چاموسره دی دخلکو په سترگو ورننوځی، موږ له مسعوده پوښتنه کوو چې آیا دکابل هغه برخه چې ته پری دحکومت دعوه کوی عملاً دکمونیستانو په لاس کی نه دی ؟ ایا دبابه جان گارنیزیون ، دجنرال مومن قطعات، او دخاد جهنمی کمونیستی شبکه په اصطلاح (ستاد قلمرو) په کابل بشپړ تسلط نلری؟ آیا ددولت دریاست ددفتر رئیس کمونیست او ملحد« مصلح» نومی نه دی!.

ایا استاد ربانی درویوټ په څیردهغه په اشارو خوځی را څوځی نه؟ آیا ددفاع وزارت مهم او کلیدی پوستونه دکمونیستانو په واك کی نه دی؟

مسعود په خپلو خبرو کی یو ډول اعتراف کړی چې کمونیستان یو قوت او خطر دی، ځکه ویلی یی دی چې که بهرنی هیوادونه دهغوی مرسته وکړی بیا خطر دی.

یوه بله مسئله هم دهغه له څرگندونو ښکاره ده ، هغه داچې بهرنی اسلام دښمنه هیوادونه چې کله په افغانستان کی دکمونیستانو په بڼه کی یو داسې قوت لری چې هغه استعمال کړی، بیا داځنگه عقل منلای شی چې دهغه له استعمال ډډه وکړی؟ یا داده چې مسعود په خپله همدی هیوادونو ته دکمونیستانو په نقش کی کار کوی او یا داچې کمونیستانو ته په پوره تحرك خپلو او دخپلوبادارانو داهدافو لپاره دکار زمینه برابره ده، چې متأسفانه دا دواړه شیان واقعیت لری ، یعنی هم مسعود دهغو هیوادو او طاقتونو کټه کار کوی چې کمونیستان لمسولای او تقویه کولای شی او هم کمونیستان په خپله دخپلو اهدافو او بادارانو لپاره دخدمت پراخ میدان او چانس لری.

مسعود په یوه بل ځای کی له « حکمتیار» سره دخپلو اړیکو په برخه کی وائی چې» زه او «حکمتیار» په پوهنتون کی دوستان وو او دداؤد تروخته موله یوبل سره ښې اړیکی درلودی، زه په پولتخنیك کی وم او هغه په انجنیری کی ، موږ په گډه

دانقلاب هڅه کوله خو دنظر اختلاف مو درلود، «حکمتیار» دانفجاراتو دتاکتیك پلوی کوله او زه ددی مخالف وم.

مخکی له دی چی د « مسعود» په دی خبرو تبصره وکړم، یوه ضمنی مسئله یادوم هغه دا چی ځینی کسان او تبلیغاتی مراجع« مسعود» ده حکمتیار» رقیب عنوانوی، حال داچی دا یوه پیره له انصاف نه لری او غلطه مقایسه ده . که څه هم په دی به مور بل وخت مفصل وغږیږو، خودلته دومره وایو چی مسعود په خپله هم ناخود آګاه دامقایسه ردوی څکه په هغه باندی ده حکمتیار» قیادی شخصیت ، تبارز، کفایت اتوریتی او ظرفیت دومره تاثیر پروت دی او دومره په دی پوه دی چی په بهرنی تږه کی « حکمتیار» څومره وقار، وزن او پرستیژ لری ، چی په بنکرورو درواغو کي غواړي په قلابي توګه دهغه په ردیف کي ځان راولي تاسی ته که په لاندی لیکو کی دهغه دخبرو بی بنسټی په ګوته شی. نو زموږ خبری به لانبنی درته روښانی شی.

اصلاً مسئله داسی ده چی « حکمتیار» مسعود په کابل کی نه لیدلی او نه یی پیژانده مسعود په (۱۳۵۲) کال پوهنتون ته تللی دی.

او دا هغه وخت ؤ چی « حکمتیار» له زندان نه را وتلی ؤ او دپولیسو تر کلك تعقیب لاندی ؤ چی له لږ مودی وروسته پاکستان ته مهاجر شو.

مسعود تر (۵۳) دمځه له اسلامی غور ځنګ سره هیڅ پول رابطه نه درلوده ، دده یو او بس ؤ چی اغلباً ئی په اردو کی وظیفه درلوده، له هغه سره انجنیر صاحب حبیب الرحمن شهید، تماس نیولی او داسلامی غورځنګ دغړیتوب بلنه ئی ور کړی وه هغه داسلامی غورځنګ غړی شو او دهغه له لاری احمد شاه « مسعود» له اسلامی تحریك سره رابطه و نیوله ، احمد شاه مسعود چی کله پاکستان ته ولاړ په خپله خوله به ئی اعتراف کاوه چی ده په

هیڅ مظاهره کی برخه نه ده اخیستی.

داچی مسعود ویلی چی ده له « حکمتیار» سره دکار دروش په سر اختلاف پیداکړ او « حکمتیار» دانفجاراتو په تاکتیك کار کول غوښتل او دی ددی مخالف ؤ څکه بیځایه ده چی تر اوسه دهیچا له خولی او هیڅ سندنه داخبره نه ده اوریدل شوی او لیدل شوی چی دانفجاراتو په تاکتیك یافکر شوی او یا عمل – بلکی اتفاقی روش داؤ چی په پوځی اقدام او انقلاب لاس پوری شی او رژیم نسکور کړای شی.

دداؤد په وخت کی داسلامی غورځنګ پول ترکیز په همدی تګلاره ؤ، له مسعود سره داختلاف دمسئلی واقعیت دادی چی کله دپنجشیر تر عملیاتو وروسته څوکسان تر اشتباه لاندی واقع شول او ونیول شول، دهغوی په پله کی داحمد شاه مسعود نوم هم ؤ دیادونی وړده چی په دی وخت کی په پیښور کی دچارو مسؤلیت ده حکمتیار» صاحب نه بلکی دقاضی صاحب محمد امین« وقاد» په غاړه ؤ مسعود په پیښور کی له نیول کیدو وویریده او په پټه کراچی ته ولاړ.

داؤ د مسعود داختلاف واقعیت چی دی اوس ورته دفکری اوسیاسی قیادت دخیالونو لپاره د نظر او روش داختلاف دبنی ورکولو هڅه کوی.

مسعود صاحب دمرکی په یوه برخه کی وائی چی « څه موده مخکی دغزنی قاری بابا او دکندهار یو لوی قوماندان راغلل او له مور سره یی خپل پیوستون اعلان کړ.»

موږ دښاغلی مسعود په دی خبره اوږده څه ویل نه غواړو. په همدی اکتفا کوو چی قاری بابا دکابل تر سفر وروسته دلومړی ځل لپاره دی ته چمتو شو چی باید دغزنی ولایت په شوری او ادارو کی دحزب اسلامی قوماندانان مهمه برخه او نقش ولری، او په کندهار کی هم چی څه وشول ، هغه له هیچا پټ نه دی.

«مسعود» په یوه بل ځای کی وائی چی« دډاکتر نجیب په باب باید مشران پریکړه وکړی.»

موږ له مسعود نه پوښتنه کوو چی دببرك « کارمل » په باب به څوك پریکړه کوی، که مسعود په خوله زموږ دی پوښتنی ته هر راز ځواب راکړی خو مطمین یو چی دزړه خبره ئی داده چی دهغه په برخه کی به ببرك « کارمل» په خپله دجنرال بابه جان، جنرال مومن ، فرید مزدك محمود بریالی او مصلح په سلا او مرسته تصمیم نیسی.

دمرکی په پای کی محترم احمد شاه مسعود وایی چی « زه یو معتدل مسلمان یم، غواړم معتدل اسلامی حکومت جوړ کړم دبنیاد ګرایانو پر خلاف زما تر ټولو ښه وسله « اعتدال» دی او زه دا وسله دهغوی پر خلاف استعمالوم.

دښاغلی مسعود په دی خبرو هم له اوږدی تبصری تیریږم خو دا ویل لازم ګڼم چی لومړی خو متأسفانه مسعود صاحب دپوهی او سواد له دومره اندازی برخمن دی چی زه مطمن یم او ددی لپاره زیات دلایل لرم چی متا سفانه هغه دبنیادګرایی او اعتدال یافندمنتالیزم او« مودریشن» په مفهوم نه پوهیږی هسی بیچاره اوریدلی دی چی« علی آباد هم ښار دی».

دائی تر غوږ وشوی چی امریکا بنیاد ګرایی نه خوښوی او اعتدال خوښوی ، نو د ی هم سبا اوبیګاه دی ته اړم دی چی« هله زه بنیاد ګرانه یم ، معتدل یم» دی فکر کوی چی بس همدا چیغه به ماته دسکندر دیوال[*]او دهما مرغه به مي په اوږه کښیني.

په داسی حال کي چی تر ده مخکی ډاکتر نجیب تر ده په ډیره هوښیاری او مهارت په امریکا غږونه وکړل چی که مو زما ملا ونه تړله ، په افغانستان به د حکمتیار بنیاد ګرایی حاکمیږی او بیا به په دی سیمه کی دامریکا ګټی برباد شی» خو موږ ولیدل چی نجیب ته یی هیڅ کټه و نکړه، که نجیب چی په ټولو لحاظونو تر مسعود پیاوړی او با استعداد ؤ له دی څه تر لاسه نکړای شوای ، مسعود صاحب به بی له دی چی ځان د مسلمانانو په مخ کی لا بدنام کړی او ددی متل مصداق شی چی« هندوهم شو، ګوره یی هم ونه خوړله »، بل څه شی تر ګوتو کړی؟!!

موږ له مسعوده پوښتنه کوو چی آیا دکابل هغه برخه چی ته پری دحکومت دعوه کوی عملاً دکمونیستانو په لاس کی نه دی؟ آیا دبابه جان ګارنیزیون ، دجنرال مومن قطعات، او دخاد جهنمی کمونیستی[*] شبکه په اصطلاح ستاد قلمرو په کابل بشپړ تسلط نلری؟ آیا ددولت دریاست ددفتر رئیس کمونیست او ملحد « مصلح» نومی نه دی!

# ماو جهاد در تاجکستان

ابو جاهد

برای من نام بخارا باخاطرات ایام کودکی ام عجین شده است ، زمانیکه سالهای اول تحصیل در مکتب راسپری میکردم درمیان همصنفانم چند نفری ازمهاجرین بخارا نیز بودند، در ولایت ما گروه کثیری ازمهاجرین بخارا سکونت داشتند، مردمی زحمتکش وفعال ولی آرام وبی سر وصدا بودند، دهقانان و دامپروران ماهری بودند که بسیاری از زمین های لامزروع در ولایت مابه همت آنان تحت کشت و زرع آمد.

همصنفان من ،از فرزندان همین مهاجرین برای اولین بار برایم از بخارا سخن گفتند سخنانی که خوداز پدران خویش شنیده بودند از ظلم بلشویك ها، ازمشکلات هجرت از جهاد وشهادت مجاهدین...

بعد ها از بزرگترها سخنانی مشروح تر و جامع تر در باره این جریان شنیدم ، نام ابراهیم بیك و انور پاشا بگوشم رسید و ازجنید خان و بعضی دیگر که اینك بخاطر ندارم زیرا بعضی از آنان قوماندانان گروپ های کوچك از مجاهدین در قریه ها بودند. سالها بعد با یکی از جنرالهای قدیم اردوی افغانستان که پیر مرد سالخورده ئی بود برخوردم جنرال محمد علم



استاد عبدالله نوری رهبر نهضت اسلامی تاجکستان

لوگری کسیکه ولسوالی پل علم ولایت لوگر را بنام وی مسمی کرده اند، او این افتخار را ببشتر مدیون جنگ خود با ( ابراهیم بیگ) یکی از رهبران مجاهدین بخارا بود.

جنرال پیر حکایت میکرد که ابراهیم بیك و قوای تحت فرماندهی اش در سواحل دریای آمو خواب راحت را از چشم سربازان روسی ربوده بود قوای تحت فرماندهی وی بسواری اسپ های تیزگام سربازان روسی را زنده می ربودند. آنها به سنگر گرفتن کمتر عادت داشتند، چون برق برسر دشمن فرو می آمدند و کارش رایکسره میکردند.

روسها از دولت افغانستان برای قلع و قمع وی کمك خواستند و تحایف گرانبهائی به درباریان نیز مخفیانه داده شد تا ذهنیت در دربار را بر ضد مجاهدین بر انگیزند، پادشاه بخارا که به کابل پناه آرده بود ، در پغمان تحت نظارت قرار گرفت و در عبور و مرور مهاجرین و مجاهدین از مرز قیود وضع گردید.

دولت افغانستان نیرو هائی برای سرکوب ابراهیم بیك به شمال افغانستان اعزام داشت ( ابراهیم بیك) به جنگ در دوجبهه وادار گردید و سرانجام بعد از شکست نیروهایش به اسپ خود را به امواج خروشان دریای آمو سپرد و... به تاریخ پیوست. رژیم های حاکم بر افغانستان از امان الله گرفته تا نادر وظاهر هرکدام بخاطر حفظ تخت و تاج خویش با روسها بر سر جهاد بخارا معامله کردند تااینکه روسها عملاً بر سراسر آسیای میانه تسلط یافتند.

مهاجرین بخارا بعد از آمدن به افغانستان اشغال افغانستان بوسیله روسها را نیز پیشبین بودند، به همین علت آنانی که توانائی و استطاعت مالی شان اجازه میداد افغانستان را به مقصد کشور هائی چون سعودی، ترکیه ویا پاکستان ترك گفتند در رابطه به خیانت رژیم های سابق بر افغانستان به جهاد مردم آسیای میانه بعضی ها فاکتور های قومی و زبانی راتیز دخیل میدانستند، به این ... که چون درین دوره در افغانستان حاکمیت دولتی بدست پشتون ها بود، آنها نمی خواستند باحمایت ازجهاد در بخارا احساسات قومی ملیت های غیر پشتون را درشمال افغانستان دامن بزنند، یك تاجکستان مستقل در جوار افغانستان موجب تقویت احساسات نشنلستی دربین تاجك های افغانستان نیز می شد که برای حاکمیت نظام حاکم

خطر ناك بود، درحالكه برعكس همین رژیم ها باحمایت ازمسئله پشتونستان به تقویت احساسات نشنلستی درمیان پشتون ها می كوشیدند زیرا این كار

به تقویت نظام حاكم كمك میكرد. درمجموعه، از این گونه حقایق و شایعات و تحلیل ها ماهیت رژیم های گذشته بزیر سوال میرفت و معامله گری های این نظام ها برسر جهاد مسلمانان آسیای میانه مورد تقبیح و نكوهش قرار می گرفت.

باكودتای كمونستی ۱۳۵۷ وبعد از آن تجاوز روسها به كشور ما دورانی فرا رسید كه تكرار فاجعه آسیای میانه را در كشور خود شاهد بودیم، كمونیست ها در برابر مسلمانان افغان همانگونه عمل كردند كه اسلاف شان علیه مسلمانان آسیای میانه عمل كرده بودند، دوران هجرت وجهاد فرا رسید.

اكنون نوبت كشورهای همسایه، ما مخصوصاً پاكستان بود كه تصمیم بگیرد كه آیا دربرابر مجاهدین و مهاجرین همانگونه عمل كند كه رژیم های گذشته درافغانستان علیه مردم آسیای میانه كرده بودند، ویااینكه تجاوز به افغانستان را بعنوان یك عمل ضد انسانی وضد اسلامی محكوم نموده و به حمایت ازمردم افغانستان كمر بندد.

پاكستان تحت رهبری جنرال محمد ضیاء الحق راه مردم دوم را برگزید زیرا میدانست كه درنقشه جیوپولتیك اتحاد شوروی مسیر رسیدن به آبهای گرم جنوب، از پاكستان می گذرد بنابر این مصلحت پاكستان ایجاب این پیشدستی رامی نمود تاجنگ دفاع از پاكستان نیز در افغانستان صورت گیرد. بناء در جهاد افغانستان دفاع پاكستان نیز مطمح نظر آنان بود.

هرچند جنرال محمد ضیاء الحق قبل از اینكه پیروزی جهاد افغانسان را ببیند به شهادت رسید ولی اساسی كه وی برای دفاع ازجهاد افغانستان نهاده بود بعد ازوی نیز كارائی داشت وسر انجام روسها نه تنها در افغانستان بلكه درجهان شكست خوردند.

پاكستانی ها درطول تقریبا چهار ده سال جهاد، هرگز مجاهدین را برای مذاكره و تفاهم بادشمنان شان تحت فشار قرار ندادند، پاكستان بخاطر حمایت ازجهاد افغانستان قیمت بزرگی پرداخت، دهها فقره انفجار بمب در شهر های مختلف بخصوص صوبه سرحد موجب آن نگردید كه پاكستان مهاجرین را تحت فشار قرار دهد تا این كشور راترك گویند هیچ اسیر روسی را پاكستان بدون میل مجاهدین به روسها تسلیم نكرد.

وقتی موافقنامه ژنیو به امضا رسید كمونیست ها و روسها گمان داشتند كه از آن به نفع خویش استفاده خواهند كرد ولی آن امیر آنان نیز نقش بر آب شد وجهاد ادامه یافت، مجاهدین افغان نه تنهاخواهان آزادی كشورخود بودند بلكه بارها وباغرور اعلام داشتند كه جهاد آنان بافتح افغانستان به پایان نخواهد رسید بلكه بعد از آزادی افغانستان برای آزادی آسیای میانه ازجنگ روسها به آنسوی آمو خواهند رفت.

خواست خداوند این بود كه از بركت جهاد افغانستان نه تنها افغانستان آزاد گردید بلكه همزمان با آن جمهوری های تحت استعمار روسیه از جمله جمهوری های مسلمان نشین آسیای میانه نیز آزاد شدند اما در آن كشورها بزودی كمونیست های سابق با اندك تغییر در ظاهر كارداباره بقدرت بازگشتند بخصوص درتاجكستان مسلمانان تحت شدید ترین ضربات قرار گرفتند، روستاها بخاك یكسان شد و هزاران نفر از آنان به هجرت به افغانستان مجبور گردیدند.

اكنون آن زمان فرا رسیده بود كه مجاهدین افغان شعار های خود در مورد آسیای میانه را در عمل پیاده سازند و كاری متفاوت با آنچه كه رژیم های گذشته در افغانستان در برابر مجاهدین بخارا انجام داده بودند انجام دهند.

شاید بعضی ها چنین استدلال نمایند كه اختلاف میان مجاهدین آنانرا ازحمایت مستقیم شان از مجاهدین تاجكستان باز داشت . البته این استدلال را تاحدودی میتوان پذیرفت ولی بهرحال این انتظار از مجاهدین و جود داشت كه دربرابر جهاد ومجاهدین تاجكستان همانگونه موقف بگیرند كه خود در دوران جهاد خویش علیه شوروی و مزدورانش در افغانستان ازكشور های دوست بخصوص همسایگان انتظار داشتند امامتأسفانه چنین نشد.

متأسفانه بیشترین جنایت ها به جهاد تاجکستان ازطرف گرایش های در صف مجاهدین صورت می گیرد که امان الله ، نادر و ظاهر رابخاطر خیانت مشابه نفرین میکردند و به این خیانت رنگ قومی و زبانی میدانند، عجیب اینکه از زبان بعضی از رهبران مجاهدین در رابطه به جهاد تاجکستان سخنانی بگوش رسید که خود سالها بعضی از گروهها درپاکستان را بخاطر موقف مشابه در برابر جهاد افغانستان محکوم میکردند.

درشرایطی که هزاران سرباز روسی تاجکستان را عملا در اشغال خود دارند و رژیم فعلی به قوت آنان بر سر اقتدار است، درشرایطی که دهها هزار مسلمان ازظلم همین رژیم خانه و کاشانه خودرا رها کرده و به افغانستان پناه آورده و در بد ترین شرایط ممکن حیات بسر می برند. حیرت آور است که از زبان بعضی از رهبران ما این سخن بگوش می رسید که مجاهدین تاجکستان باید با دولت دوشنبه به مذاکره بپردازند زیرا جنگ بجز تباهی و بربادی حاصلی ندارد.

از کسانی که چنین نظری دارند باید پرسید که اگر راه حل پیشنهادی شما به مجاهدین تاجکستان مذاکره و تفاهم است نه جنگ پس چرا خود شما چهارده سال سخن از جهاد گفتید و هرنوع مذاکره به رژیم کابل را به این عنوان که آن رژیم ، دست نشانده روس بوده و بقای خودرا مدیون حمایت روسهاست رد کردید؟ آیا نتیجه چهارده سال جنگ برای افغانستان تباهی وبربادی نبود؟ آیا همین موقف شمادر قبال مسئله تاجکستان نوعی اظهار ندامت ازجهاد چهارده ساله درافغانستان نیست؟!!

اگر دیروز کسی به شما می گفت که باید بارژیم کابل به مذاکره بپردازید، اگر پاکستان ویا ایران از نجیب ویا ببرك دعوت دیدار رسمی بعمل می آورد عکس العمل شما درمقابل این عمل چه می بود؟

سفر وزیر خارجه، افغانستان به تاجکستان و صحبت بامقامات رسمی آن کشور بعد از واقعه آتشباری روسها بر روستا های داخل افغانستان که در اثر آن صد ها نفر ازمردم بیدفاع این مناطق به شهادت رسیدند جز تسلیم شدن ذلت بار به زورگوئی روسها مفهوم دیگری ندارد.

دیدار حیدرعلی رحمانوف رئیس رژیم دست نشانده روسها در تاجکستان ازکابل و استقبال رسمی ازوی به معنی پذیرفتن حیثیت قانونی آن رژیم دست نشانده ازطرف حکومت مجاهدین درکابل است که برای تضعیف روحیه مجاهدین تاجك بعمل آمد وبد تر از همه اینکه عده اسیر روسی راکه مجاهدین تاجکستان در جنگ به اسارت در آورده بودند، رئیس جمهور حکومت مجاهدین درکابل بعنوان هدیه، حسن نیت خویش تقدیم رحمانوف می کند، بدون اینکه درمقابل امتیازی برای مجاهدین تاجیك مطالبه نماید درحالیکه همین اکنون صد ها نفر ازمجاهدین و اعضای تحریك اسلامی تاجکستان در زندان های کمونیست ها درین کشور بسر می برند. حکومت کابل میتوانست در برابر سپردن چهار نفر اسیر به رحمانوف خواستار آزادی عده یی ازاین زندانیان گردد.

آنچه که حکومت مجاهدین درکابل تاکنون در رابطه بامسئله تاجکستان انجام داده است خلاف شعار های خودشان و خلاف خواست برحق مجاهدین مسلمان تاجك است که میگویند هرگز باحکومت موجوده در دوشنبه حاضر به مذاکره نخواهند بود زیرا آنها فقط باروسها طرف اند و با آنان مذاکره خواهند کرد.

موقف دپلوماتیك دولت در رابطه بامسئله تاجکستان نه تنها بسیار ضعیف بلکه سخت انفعالی است. وقتی دولت اعلام میدارد که یك گروه ازمجاهدین تحت نفوذ دولت سربازان روسی رابه اسارت گرفته اند و بعد همین سربازان را درکابل آزاد میکنید به معنی اعتراف به مداخله درامور داخلی تاجکستان است با این تعهد که دیگر این مداخلات تکرار نخواهد شد.

خوش شانسی مجاهدین تاجك درین است که دولت کابل کنترولی برمرزهای شمال کشور ندارد و گرنه برای خوشامد روسها وکمونیست های حاکم بر تاجکستان همان کاری رامیکرد که دهها سال قبل رژیم های حاکم بر افغانستان دربرابر مجاهدین انجام داده بودند.

تجربه بعضی انقلاب ها درتاریخ نمایانگراین حقیقت است که وقتی انقلابیون بقدرت می رسند بعد از مدتی سرانجام همان راهی را در پیش می گیرند که خود آنرا در رژیم های پیشین محکوم میکردند ولی به جرئت میتوان گفت انقلابیون در هیچ جای دنیا مانند انقلابیون ما اینقدر زود به اصول ادعائی خویش پشت پانزده وشعارهای خویش را فراموش نکرده اند

«شفیقي»

تکل

# دارمانونو هدیره

ماویل دتیرو خوارلسو کلونو ټول حسرتونه او ارمانونه به مې په کابل کې پوره شي ، کابل چې زموږ دهیلو مرکز ؤ، کابل هغه خوږ نوم چې په اوریدو به یې له مهجور و زړه ټوله ستوماني اومایوسي داسې وتښتیدله لکه دلمر له سپینو وړانګو چې تیاری وتښتي او پوه پناه شي.

هوکې ! ماویل دهجرت ددیار دسوځنده لمرونو ، بې وسیو مایوسیو او اندیښنو ټول بار به مې له زړه نه دکابل په لیدو لرې شي.

دهجران داغونه به مو دکابل په دیدن ټکور شي، ماویل څم به ښکلي کابل ته به دخپلو ستړیو شپو ورځو داستانونه وایم، څم به کابل ته به دنور هیواد دورانیو اوکنډوالو کیسې کوم، ښکلي کابل ته به داغیارو دوحشتونو یادونه سپړم، کابل ته به دهغو ارمانجنو ځوانانو خاطرې یادوم چې ددغه افسانوي ښار ددیدن په ارمان دهیواد په غرونو، رغونو دښتو او میروکې ښخ دي.

دهغو ځوانانو نه به ورته وایم چې د «کابل» په جادو او کوځو دآسمائي ، شیر دروازې او علی آباد پر سر دښنو بیرغونو درپیدو هیله من وو او دارګ پرمانۍ داسلامي نظام دبرمیال توغ درپیدو په انتظار.

ماویل څم کابل ته دهغو وحشتونو داستانونه وایم چې پر دو او مزدورانو یې په ننګرهار، کندهار او مزار کې تر سره کړي وو، ماویل زه به دتاریخي بالاحصار تربرجونو لاندې پر هیواد د تیر ناورین دخاطرو یادونه راسپړم.

دکونړ دکرالي، دکندز دچاردرو، دلغمان دګنبیرې، هرات ، وردګو، لوګر او.... نورو عامو وژنو داستانونه به وایم، کابل ته به دبې رحمه وحشیانو دوحشتونو کیسې کوم.

ماویل څم به کابل ته به له ګیلونه ډك زړه تشوم څکه زه درنځورو استازی وم، ماڅان دکنډوالو قاصد ګاڼه ، ماویل زه خوبه دویجاړو کنډرونو فریادونه او پیغامونه، ښکلي او روغ کابل ته رسوم.

ماویل له کنډوالو او ورانیو نه ستړې سترګې به مې دکابل په روغو جادو او ښکلو بنګلو پخې اودمه کړم.

ماویل دوحشت له دنیاګۍ نه به دکابل په ښکلو باغونو او پاکو جادو کې پناه غواړم، څم به دتیر څوارلس کلن سرګردانه ژوندانه ټولې ستوماني به هلته وباسم ، دکوټه سنګۍ ، دهمزنګ ، پل باغ عمومي پر لاره به څم په ټول کابل به راګرځم ، جاده اوچمن به ګورم، په بالاحصار کې به دتیروعظمتونو پرځلو دنویو ګټلیو

ویاړونو زیرې کوم او پر دیوالونو به یې دوخت داکبر خان او محمد جان خان نومونه لیکم ، څم به دکابل په ښکلي غیږ کې به تر انې وایم اودهیواد دشازلو همتونه او شهامتونه به ستایم خو افسوس چې حسرتونه او ارمانونه مې میرات وو .

نه پوهیدم!

نه پوهیدم چې زما تراژیدۍ لاپای ته نه ده رسیدلې او ماچې دکابل په باب څه تصور درلود یو خوب ؤ،ماته چې دخدای په دنیا کې یوکابل را پاتې ؤ هغه هم ظالمانو رانه اخستې ؤ او زما دارمانونو جنازه دکابل په کنډوالو کې ښخه وه.

کابل! هغه ښکلي کابل نه ؤ پرځای یې یوه کنډواله پرته وه چې دمرګونو او وحشتونو پکې راج دی .

خدای (ج) خبر دی چې کابل دچا سپیره نظر وخوړ، که دکوم چنګیز دقهر او غوسې لمبو؟!

خو اوس هلته ژوند په سلګو دی او مرګ له ټول وحشت او هیبت سره اتڼ اچولی.

ښکلي کابل لکه دماشوم په لاس ګل پاڼې پاڼې شو. اوکابل زما دارمانونو کور زما دارمانونو هدیره شوه.

# «سکوت حکیمانه»

## بنیاد واساس حکومت اسلامی را چه تشکیل میدهد؟

**مأخذ** : کتاب مردم پارلمان اسلام * **نویسنده** : ایس ایم ظفر * **مترجم** : ل. خرم

قرآن کریم در باب حکومت اسلامی چرا تنها از مشوره نام برده است وپس چرا طرح خاصی برای حکومت اسلامی پی ریزی ننموده است؟

برای توضیح مطلب مادرینجا آن آیات قرآنی را ترتیب وار یکی پی دیگر مثال میآوریم که به نحوی از انحا با چگونگی حکومت اسلامی تعلق داشته باشد.

سوره یوسف آیه ٤٠ ( إن الحکم الا لله ) حکومتی بجز حکومت الله «ج» وجود ندارد.

سوره النساء آیه ۵۹ ( یا ایها الذین آمنوا اطیعو الله و اطیعوا الرسول و اولی الامر منکم )

یعنی : ای مؤمنین: اطاعت الله (ج) و رسول اورا بنمائید و هم اطاعت آنرا که بر شما حکومت می کند.

سوره آل عمران آیه ۱۵۹ ( و شاورهم فی الامر ) یعنی: ودر کار های خویش از او مشوره بخواهید.

سوره شورا: ( و امرهم شورا بینهم) یعنی : وکارهای خویشرا با مشوره یکدیگر انجام می دهند.

سوره آل عمران آیه ١٠٤ ( و لتکن منکم امة یدعون الی الخیر و یأمرون بالمعروف و ینهون عن المنکر و اولئك هم المفلحون).

و از شما باید گروهی باشد تا مردم را به سوی نیکی بخواند و امر به کار نیك نماید و از کار های زشت منع نماید همین مردم نجات یافته گانند.

سوره مجادله آیه ۲۲

اولئك حزب الله ترجمه( همین گروه لشکر( سپاهیان) خداوند اند.

سورة المائده آیه ۳

الیوم اکملت لکم دینکم و اتممت علیکم نعمتی و رضیت لکم الاسلام دینا.

امروز ما دین تو را برایت تکمیل کردیم و نعمات خویشرا بر تو کامل نمودیم و برای تو دین اسلام را پسندیدیم.

بامطالعه آیات فوق الذکر می بینیم که در هیچ کدام آنها طرح کامل و مشخص برای نظام حکومت اسلامی وجود ندارد و تنها از چند اصل بنیادی تذکر به عمل مده است.

در قرآن عظیم الشان در مواردی چندی بسیار به تفصیل صحبت شده است مثلاً در موضوع وراثت در قرآن کریم چنان بحث جامع و همه جانبه درین باره صورت گرفته که ما برای هرگونه پرسشی درین باب جواب مقنعی از آن یافته می توانیم، و در هرحال باسادگی حصه شرعی وارث را در یافت کرده می توانیم ، خلاصه اینکه فقه همه مواد و توضیحات خویشرا در باب وراثت از قرآن حکیم اخذ کرده است.

به همین ترتیب در بارهٔ وضو نیز مشاهده می کنیم انسان در بحری از حیرت و اعجاب فرو میرود وقتی مینگرد که در کتابی چون قرآن کریم که کلام آسمانیست کتابی که در آن تاریخ بشریت درج است اصول تجارت در ان وجود دارد ، فلسفهٔ انقلابی محتوای آنرا تشکیل میدهد و بعضی مسایل را با تفصیل کامل مطرح نموده است درمورد چگونگی ساختار حکومت و نظم و ترتیب آن بجز از تذکر چند اصل دیگر چیزی وجود ندارد و همه جا سکوت است آخر چرا؟

آیتی از سوره مائده که ترجمه آن چنین است « تو در هر سخن توضیح نخواه چراکه اگر هر چیز برایت وضاحت داده شود شاید که به مشکل دچار شوی».

درین ایه به خاموشی و سکوت اشاره شده است که پروفیسر عثمان آنرا به (سکوت حکیمانه) تعبیر نموده ، مابرای دریافت معانی قریب و بعد آن بسیار کوشیده ایم و تمام تفسیر های متعلق به آنرا نیز مطالعه کرده ایم ، و خواسته ایم بدانیم که درین سکوت و خاموشی چه فوایدی نهفته است.

قبل از آنکه نظریات مفسرین را درین باره به بررسی بگیریم باید در زمینهٔ شان نزول آیات قرآنی معلومات داشته باشیم. اما الفاظ قرآنی را نمی توانیم پابند دور نزول آن بنمائیم چونکه هدایات قرآنی مختص به زمان مکان و قوم مخصوص نیست ، بلکه تا جهان باقیست بشریت همیشه محتاج رهنمائی و هدایت آن است. از نقطهٔ نظر اهمیت و فواید کلام خداوندی دارای ابدیت مطلق است.

یعنی هر قوم هر ماحول و هر زمان را در بر می گیرد.

ایهٔ فوق وقتی نازل شد که آنحضرت (ص) در برابر سوالات و پرسش های پیهم مردم قرار گرفت تا آنجا که مردم در مورد اصل ولدیت پرسیدند.

درتفسیر کبیر آمده است که وقتی این سوره نازل گردید که حج تنها بر

مردم دارا و توانمند فرض است مردم از آن حضرت (ص) پرسیدند یا رسول الله آیا حج هرسال فرض است ، حضرت محمد (ص) خاموش ماند آنها بار دیگر پرسیدند اما رسول اکرم یکبار دیگر سکوت نمودند، مردم بار سوم سوال کردند حضرت محمد فرمودند، هرسال نه! که اگر بلی میگفتم پس حج هر سال واجب می گشت و اگر واجب می گشت پس شما نمی توانستید آنرا ادا کنید.

تعبیری راکه امین احسن اصلاحی درکتاب خویش( تدبر قرآن) از آیه فوق نموده مورد تأئید مانیز است « ازین دانسته میشود که فضل و کرم الهی شامل حال این امت است که ما را از طرح کردن سوالات غیر ضروری منع فرموده و از اصراف و زیاده روی باز داشته و مسایل و معاملاتی راکه میتوان با عقل حل و فصل کرد به صلاحیت ذهنی و اجتهاد ما واگذاشته است.

قرآن عظیم الشان که راهنمای انسانهاست و آنها را به تفکر و تعمق وتدبیر دعوت می کند خواستار آنست که انسان اکثر معاملات خویش را خود انجام دهد.

حدیث نبوی است که : تاوقتی که من ترارها کرده ام تو نیز مرا رها کن.

شاه ولی الله محدث دهلوی نیز از قول حضرت معاذ بن جبل (رض)میگوید که گفته بود ای مردم ! قبل از مرگ واویلا سر ندهید و قبل از حادثه در باره، آن حکم قاطع ننمائید!

از مطالعه، قرآن کریم چیزی مهمی راکه در می یابیم اینست که خدای تعالی انسان را تربیت نموده که منحیث اشرف مخلوقات چگونه زندگی نماید و اهمیتی راکه قرآن به انسان داده است در هیچ کتاب زمینی یا الهامی دیگر وجود ندارد.

قرآن انسان را مورد خطاب قرار داده انسانی که صاحب عقل وشعور و فراست است انسانی که قرآن اورا مسؤول اعمال خودش قرار داده است او را اکیدا تلقین به تفکر و تعمق نموده است تا از تدبر استفاده نموده و در زندگی طرق راه و روش های فلاح و خوشبختی اجتماعی را دریافت نماید به اساس اظهارات قرآن انسان بر بنیاد عقل و شعور خویش بر دیگر موجودات کائنات تفوق و برتری داره اوبا همین عقل و شعور خویش خوب و بد را از هم تفکیك کرده می تواند وقت وصلاحیت تصمیم گرفتن و فیصله نمودن را دارد.

**قرآن عظیم الشان که راهنمای انسانهاست و آنها را به تفکر و تعمق وتدبیر دعوت می کند خواستار آنست که انسان اکثر معاملات خویش را خود انجام دهد.**

یك دانشمند جاپانی که درمورد قرآن مطالعاتی وسیعی نموده است می نویسد:« قرآن حکیم انسان را به تسخیر کائنات هدایت و راهنمایی می کند. قرآن به انسان این اختیار را نیز داده است که باسعی و کوشش خویش و مددخداوندی تقدیر خویش را تغیر بدهد.

خلاصه اینکه انسان در قرآن بر تاریخ خویش حاکمیت تام دارد و اضحاً که کتابی با این مفکوره اصلاحی از انسان متوقع علم و فهم و اجتهاد در تمام امور زندگی اش است تا برای بهتر شدن زندگی اش طرحی را پی ریزی نماید که بیانگر تقاضا های وقت وزمانش نیز باشد.

یك عرب بدوی روزی از حضرت محمد(ص) پرسید« یارسول الله! آیا میتوانم شتر خودرا بخدا سپرده و خود در گوشه، استراحت نمایم.

حضرت محمد فرمودند: نخست تو شتر را با ریسمان محکم به جائی ببند و سپس با توکل بخدا استراحت کن. »

اینست اسلام روشن و ساده ، دینی که بر اساس فطرت بنا یافته و انسان را به سعی و کوشش فرا میخواند، جد وجهدی که بر علاوه زمینه های عملی در زمینه های فکری و ذهنی نیز لازم وحتمی است.

از نظر ما در اسلام غور و تعمق کردن درکار ها برهر مسلمان لازم است، تصور این یا استدلال کردن بر این که تفکر نمودن و اجتهاد کردن اعمال خاصه، علمای بزرگ اسلام و دانشمندان دینی است ازیك نگاه غلط است و باعث به وجود آمدن تصورات نادرست میگردد. به عقیده ما اجتهاد حق طبیعی هر مسلمان فهمیده و تحصیل کرده است ، حقی که خدای (ج) تعالی به او قایل شده است بناءً اگر شخصی مسلمانی حل مشکل کرده میتواند و به پاسخ سوالی حل نشده پی میبرد میتواند از صلاحیت خویش کار بگیرد و حل معضله را پیشکش امت مسلمه نماید.

میگویند وقتی آیه، « اذا جا ، نصر الله و الفتح » نازل شد که مژده بود بر فتح اسلام و اینکه مردم دسته دسته به اسلام روی میآوردند و اینکه حالا دیگر باید از خدای عز وجل طلب مغفرت نماید بسیاری از صحابه کرام به مفهوم و معنی اصلی آن پی نبردند و نمیدانستند که چرا ازینکه در آن مژده فتح و ظفر ذکر شده و ازجانبی امر به استغفار شده است.

مفسرین مینویسد که صحابه در همین مباحثه و مشاجره بودند که پسری جوانی ازمیان برخاست ( عبد الله بن عباس بن عبد المطلب پسر کاکای حضرت محمد (ص)) و اظهار داشت که درین ایه همچنانکه از فتح مبین تذکر به عمل آمده است به همانسان این نیز معلوم گشته است که هنگام وصال آنحضرت ورحلت او فرا رسیده.

اصحاب این حرف را با استدلال

قوی آن قبول کردند و حضرت عمر (رض) از فرط محبت واحساسات به گریه آغاز ید.

شما ببینید درینجا کسی هم این مسأله را پیش نکشید که چون این استدلال از زبان غیر عالم دین بیرون آمده پس قابل توجه نیست، خلاصه یك مسلمان عادی میتواند با غور و تعمق در مسایل دینی اظهار نظر نماید و آنرا تنها و تنها حق علمای دینی نداند با آنکه مردم ملزم به پیروی از نظریات مختلف نیستند تا هنگامیکه آن نظر به مورد تائید علما و دانشمندان قرار نگرفته باشد.

سکوتی که در قرآن بر سر بعضی مسایل و موضوعات حکمفرماست خیلی ها پر مفهوم و با معنی می نماید، این سکوت به معنی علم توجه به حل مسائل مربوط نیست بلکه در آن حکمت و فلسفه ای نهفته است خداوند (ج) با قرار کردن این سکوت حل برخی از گره های حیات را به فهم و دانائی انسان واگذاشته تا او باتفکر و تعقل در آن بپردازد ، ما این سکوت حکیمانه را نوعی حکم خداوندی نیز گفته میتوانیم.

سکوتی که در قرآن بر سر بعضی مسایل و موضوعات حکمفرماست خیلی ها پر مفهوم و با معنی می نماید، این سکوت به معنی عدم توجه به حل مسائل مربوط نیست بلکه در آن حکمت و فلسفه ای نهفته است خداوند (ج) با قرار کردن این سکوت حل برخی از گره های حیات را به فهم و دانائی انسان واگذاشته تا او باتفکر و تعقل در آن بپردازد ، ما این سکوت حکیمانه را نوعی حکم خداوندی نیز گفته میتوانیم.

چنا ن انگاشته میشود که خدای تعالی بنده اش را در امتحانی قرار داده که آیا میتواند مسایل و مشکلات رنگا رنگ و روبه فزونی، زندگی راحل کند، آیا برای پرسش ها و خواست های رویه تزاید آن چه جواباتی را ارائه می نماید. این نیز واضح است که اگر جواب مقنع و درست این همه سوالات را دریافت ننمود پس هیچ گونه رعایت و گذشتی با او نخواهد شد اورا نفی نموده و بجایش امت جدیدی به میان خواهد آورد ، امتی که با عقل و شعور و فراست خویش و در روشنی هدایات الهی برای زندگی خویش اصول درستی وضع کنند.

بالاخره این آیه اشاره ایست به سوی یك جستجو و تکاپوی ارتقائی که در آن مسلمانان منحیث یك ملت واحد به اولیت رجحان وپیشی گرفتن ازدیگران تلقین شده است تا با اختیار نمودن صراط المستقیم اقوام عالم را راهنما گردند.

حدیث مبارك است که : تو در مقابل خدای خویش فرایضی داری در آن کوتاهی مکن بعضی چیزها حرام اند تو از آنها بپرهیز حدودی وضع شده تو از آن تجاوز مکن و در برخی موارد خاموشی اختیار نموده است بدون آنکه فراموشی در کار باشد.

مولانا مودودی در توضیح این حدیث آیاتی را به تفسیر گرفته و مینویسد:« مسایلی راکه شارع بطور اجمالی بیان می کند حقایقی نیست که فراموش شده باشد، شارع میخواسته آنرا به تفصیل بیان بدارد ولی نتوانسته بلکه هدف اینست که میدان تفسیر و مواجهه را در آن باز گذاشته تا مردم در آن با فراغ خاطر و آزادی بیندیشند درین حال علامه اقبال فیصله های راکه در سال ۱۹۲٤ در ترکیه بعمل آمده بود اجتهادی نامیده و گفته است که مجلس ملی ترکیه دست به عمل اجتهاد زده است.

واضح است که همه، اعضای اسامبله، ترکیه علمای دین نبودند آنان صرف نماینده گان ملت و اعضای مجلس بودند اما چون مسأله طرح شده در مجلس متعلق به آن بخش از قرآن بود که در آن سکوت اختیار شده بود پس جایز بود تاهمه اعضای مجلس راه حلی برای معضله اجتماعی خویش می سنجیدند به همین مناسبت علامه اقبال آنرا اجتهاد نامیده است. به این سلسله میتوان به یاد داشت ها وبیانیه های اقبال رجوع نمود و در آن به بحث پراخت اما بصورت کوتاه و مجمل دانستن این موضوع ضرور است که اسلام به عوض خاموش کردن، مهار کردن و تحت تسلط گرفتن استعداد ها ونیرو فکری انسانها آنرا به حرکت و پیشروی فراخوانده است.

ما می بینیم که قرآن در باره چگونگی رئیس ملت یا اولی الامر هیچ توضیحی نداده و همچنان در مورد تعداد رؤسای یك ملت نیز چیزی نگفته است .

توقع گرفتن واخذ معلومات درباره، نظامهای سیاسی معاصر از قرآن نیز ناروا ست حکومت پارلمانی یا صدارتی اصطلاح جدید در سیاست جهانی بوده و قرآن درین مورد چیزی برای بیان ندارد. به همین ترتیب اصطلاحات ، پارلمان، کانگرس فدراسیون و غیره نیز اصطلاحاتی اند که بعد از قرن ۱۸ با پیدایش مفکوره، نشنالیزم یکجا مورد استفاده قرار گرفته اند. علاوه بر این در قرآن عظیم الشان برای حکومت اسلامی هیچ طرحی نیز وجود ندارد.

قرآن تنها واضحاً بیان داشته که حق حاکمیت و حکومت تنها از آن خداوند است و برما لازم است تا باهمدیگر به صلاح ومشوره بپردازیم ، اطاعت حکومت عدل و انصاف بر ما لازم می افتد بناء این نیز آزمایش خداوند است که ما بادر نظرداشت این اصول و اساسات چگونه نظامی را قایم نموده می توانیم.

محترم مولوی عبد الله ذاکری، محترم استاد ربانی ته په خطاب کی:

# ستاددوو ورځو حکومت دئ هغه هم گرده دنیا درسره مخالفه ده

**موږ په دی نه پوهیږو چی ستا سرنه خلاصیږی که خوف او تشویش درباندی پروت دی که ته سمی لاری ته رانشی نو باید سیاف اومحمدی درڅخه بیل شی او موږ به دی تر هغه مخالفت کوو چی څومره مو وس وی.**

*گرانو لوستونکو!*

*دافغانستان مشهور عالم مولوی عبد الله «ذاکری» دروان کال دزمری په میاشت کی ددینی عالمانو دیوه هیأت له مشر تابه سره کابل ته راغلی ؤ. دوبی دمیاشتی په لومړی نیټه ئی په ارگ کی یوی غونډی ته ویناوکړه دهغو مخاطب محترم استاد ربانی ؤ.*

*په دی غونډه کی په ښاغلیو استاد ربانی، استاد سیاف او مولوی محمد نبی «محمدی» برسیره نورووزیرانو کسانو هم گډون کړیؤ، دادی دمحترم مولوی ذاکری دوینا پوره متن ستاسی مخی ته پدو.*

الحمدلله الذی وصلوة علی اهلها وبعد، فاعوذ بالله من الشیطن الرجیم.

ان دین عند الله الاسلام ، ومن یبتغی غیر الاسلام دیناً فلن یقبل منه، و هو فی الاخرة من الخاسرین، صدق الله مولانا الکریم.

نبی کریم (ص) وایی احیاء دسنت په اخر زمان کی یو لوی سنت دی، اوددنیا او آخرت دکامیابی ذریعه ده، واجب ښیا ترسنتو ډیر جگ دی، او فرض ښیاتر هغی هم جگ دی، اوښیا حرب مقدس یو داسی فرض دی، چی دټولو دین متفق علیه دی، ترڅوچی جهاد نه وو راغلی اسلام په ډیرضعیف شکل کی روان وو. خوښیا چی دجهاد حکم راغلی اسلام هغه معراج ته وخوت چی تر اوسه هغه معراج لری، خو موږ له تاسی څخه دا پوښتنه کوو چی اسلام خو یوداسی دین دی چی الله (ج) غوښتل چی انسان له غوایی څخه راجلا کړی، یعنی عقل ورکړی، مکلف یی کړی بیا یی ترمرگه ذمه وار وی ، ( واعبد ربك حتی یاجیئك الیقین)

او الله (ج) داسلام یوازی یو حکم داسلام ، یادوه یا پنځه نه داټول اسلام غواړی ( ادخل فی سلم کافه) ددی لوی دین او ددی پاك کتاب او ددی کامل شریعت دعملی کیدلو لپاره افغانستان ستاسی په رهبری یوه لویه قربانی ورکړه.

خو اوس چی الله (ج) راسره کومك شو ، هغه کوم چی دشرابو دڅښلو ځای وو، یادزنا دکولو ځای وو، یا داسلام په مقابل کی دمنصوبه سازی ځای وو، تن دادی موږ او تاسی په کی ناست یو.

(سبحان ربك الاعلی)

دی اسلام چی دومره ارزښت درلودو، چی موږ دومره ستړیاوی دهغه لپاره برداشت کړی اوس بیا څه راپیښ دی چی بیرته مو اشتها ورته بنده ده، اوبدی اسلام کی له ځان څخه شیان گډوو، او هغه اسلام چی الله (ج) یی رانه غواړی پر هغو باندی مو سترگی نه خلاصیږی، وایی دیهودو یو داسی قانون دی چی په دری کاله کی تورات شریف مابین ته کړی او شورا پری وکړی ، دوی وایی چی دغه تورات شریف چی دری کاله وړاندی گذاره پری کیده او بایاید عملی شوی وای، اوس مناسب ندی، بیا څه ورڅخه کم کړی اوڅه ورباندی زیات کړی او لاس پکی ووهی.

دلوی رب داپاك کتاب چی الله (ج) موږ ته اجازه نه راکوی چی لاس پکی ووهو، او الله (ج) یی ضمانت کړی داپاك دین دی، او پدی تاسو ټول ښه پوهیږی، استادان یاست یامولویان یاست، یامشران یاست ، ستاسی په ذریعه باندی موږ داعملی جهاد شروع کړ، اوس ستاسی داسی اشتها پری بنده ده پرون ماهلته ملایانو ته وویل چی که اوس موږ ترکی ته ور تلای اوموږ اسلام تری غوښتی، پیښی به مو ریږدیدلی.

چی ترکی الله (ج) نه منی، کتاب یی نه منی، او پیغمبر یی نه منی، پابهرك ته ورتلای، پانجیب ته ورتلای اوس هغه چاته ورځو چی کلونه کلونه یی پدی لارکی کار کړی دی، او دالله(ج)

ددوی له عمل څخه دومره برکت راویسته چی هغه دی په الجزایر کی هغه کافر صدر اعظم مردار شو، په کشمیر کی دا ٤٥ کاله مسلمانان ددی هندوانو غلامان وو، اوس یی ستاسی دجهاد له برکته قیام کړی، همداسی نور شرق اوغرب خو زمونږ په کور کی داسی تکه توره شپه ده، پروسږ کال مونږ تا( استاد ربانی) ته راغلو ، بیا درته راغلو، او داانشاء الله زمونږ اوم که اتم نوبت دی، په همدغه کوټه کی سره ناست وو چی دا اوس پکی ناست یو، حمزه مرحوم ستا په څنګ کی ناست وو چی دا اوس عبدالرحیم اخوند زاده ناست دی، ترکال زیات وخت شوی دی اوس ته خپله دارالانشاء وگوره پوښتنه وکړه هغه فرمان به دی اوس هم پروت وی، یونقل به یی وی، تامونږ ته وعده راکړه چی ۹۰ په سلو کی ستاسی مطالبات عملی شوی دی، لس نور به یی عنقریب عملی کیږی، اوس چی یوکال وروسته مونږ راغلی یو، گورو چی نه یوازی داچی (۹۰) په سلو کی خو یوه هم نده عملی شوی، بلکه ۹۰ په سلو کی په شاراغلی ئی، دملحد دولت بقایا چی الله(ج) یی ته منی او دوی دالله(ج) وجود ته منی، ملك اومملکت یی دغه حال ته راورساوه، ته یی څومره سرگردانه کړی شرق او غرب یی په تا ولیده، درویزه دی کوله چی دجهاد لپاره یوکار توس پیداکړی. سیاف یی څومره ستری کړ او دابل یی څومره ستری کړ، اوس ته بیا په هغه باورکوی هغه راولی او داسلام کور هغه ته سپاری، په وزارت دفاع کی دی خلك مقرر کړی دی، دا پیژند وال دی دارئیس تشکیلات دی دا معاون دوزارت دفاع دی، که په گرده دنیاکی ته نن ماښام اعلان وکړی چی دوی ټیکه مونږ له گردی دنیا سره وهو، یوه ټیکه دپوځ درهبری ، چی په دنیاکی هرڅوك پوځی رهبر غواړی، افغانستان یی هغه ته ورکوی اویله ټیکه دعلم ورسره ووهی چی علما چی هرڅوك هرچیری غواړی، دافغانستان علماء حاضر دی زما دا باور دی چی انشاء الله افغانستان به خلاصیږی، ستا هغه ذخیره به لاهماغسی پاتی وی.

داسلام بچیان چی دروس په مقابل کی یی دغه نتیجه لاس ته راوړه او ته یی پدی تخت کښینولی، چی یو روسی پری ناست وو اوس بیا ته پر هغی باندی بدگمانه یی اوبیاهغه څوك را اخلی چی ته یی لدی حال سره مخامخ کړی اواسلام یی لدی حال سره مخامخ کړ دا پیژندوال صاحب دی، دا فلانی صاحب دی، حتی ته په خپل څنگ کی هغه څوك کینوی چی دروسی بچی وو داحوارلس کاله، بیانوم هم دمصلح(داستاد ربانی یوکمونیست سلاکار دی «اداره» پری ایږدی.

**حتی ته په خپل څنگ کی هغه څوك کینوی چی دروسی بچی وو داځوارلس کاله، بیانوم هم دمصلح(داستاد ربانی یوکمونیست سلاکار دی «[illegible]» پری ایږدی.**

دا فلانی پیژند وال دی، دا رئیس تشکیلات دی، او دافلانی ډگرجنرال دی، که ته په اسلام کی ددی لپاره دلایل لری، بالکل مهربانی وکړه په خپله یی وایه که نماینده تاکی دغه سیاف صاحب وتاکه دغه مولوی محمدنبی صاحب وتاکه ، بل څوك وتاکه ، په هغه کوټه کی ورسره کیښینو مونږ ته دی قناعت راکړی، اوکه الله (ج) هغه شی ته منی، پیغمبر(ص) یی نه منی قرآن اوسنت یی نه منی، بیاته څرنگه داکار کوی چی چرگ او شغال دی په یوه کټوکی سره اچولی دی اوس یی مونږ ته ، راوړی وایی چی داغوښی دخوراك دی، ونیسه نوش جان یی کړه، چرگ او شغال چی په یوه کټو کی پاخه شی هغه شغال جوړیږی هغه گیدړ جوړیږی، دروس بچیان اوملحد دولت په بقایاوو مونږ ویل چی دابندی خانی به پری ډکی کړی، داپلچرخی به په دوی ډك شی، ټولی کندی او دبری دمجاهدینو په وینو ککړی دی، اوهډوکی یی هغه ورځی هم پراته وو دصدیق الله په ځای کی، زولنی ئی په لاسو اوپښو کی وی، ته اوس بیاهغه خوښوی، ترتا لوی تخت اوتاج دظاهرشاه او داود شاه وّ ، ستانن ددووررځو حکومت دی هغه هم گرده دنیا در سره مخالفه ده، دهغو داسی فرعونی حکومت وو چی دهغو په مخ کی چاکلمه نشوای ویلای، پنځوس کلن حکومت یی وو، دوه بدبختان پدی اجتماع کی راغلل، یوقادر وو یو وطنجار وو کافران دی دوو کسو دپنځوسوو کلونوحکومت داسی ټوکرټوکر کړ، داود یی پدی ارگ کی کوفته کړ چی نه یی هډوکی چاولید اونه یی لنده چاولیده، نه یی سترگه چا ولیده، اوس ته راولاړیږی هغه دروس پر بقایاوو باورکوی راولی یی داسلام په پوځ کی یی دروی؟ او دومره ډیر پوځیان ته لری، له دنیاسره ټیکه ووهه ، ستاټیکه به پوره شی، اوخلك به لاذخیره درته پاتی شی،مونږ پدی نه پوهیږو چی پدی ستاسر ته خلاصیږی؟ه پرتا باندی خوف اوتشویش له کومی خوا وارددی، خوته داسی ملت لری چی دروس په مقابل کی دی وجنگول، میدان یی درته وگاټه،اوس ته بیاڅنگه دیوه گیدړ په مقابل کی سرښکته کوی، یادیوه پشی په مقابل کی سرښکته کوی، زمری ته یی او ددنیا هغه لوی ښامار دی راچپه کړ ، او اوس یی ته مراعات کوی،چی دخالق حکم یوی خواته

درته ولاړ دی، دمخلوق تقاضا بل خواته درته ولاړه ده ، دادی دپوځ حال دی، نن دریمه څلورمه ده په ستره محکمه کی دی هغه بقایا دملحد دولت چی داپنځلس کاله بی پرتافتوا وویستله چی ته امریکایی ، زه روس یم دابل فرنگی دی، داداسلام بچیان بی اعداموَل، دا بی نسیمی دی، دایی حلیمی دی دا بقایا دملحددولت دقران په مرکز کی تامقرر کړل، داسلام په پوځ کی دی هغه کسان مقرر کړل چی هغه داسلام دښمنان وو، وزارتونه دی تیاری زناخانی دی یا فاحشه خانی دی. چی ور شی په سوو ښځی شونډی سری او مخونه غوړ دی، دازه نه پوهیږم چی داڅرنگه اسلامی حکومت دی، دا اوس نوی را نازل شو، پخوا پټ وو مونږ نه وو پری خبر، اوس تا راپیداکړ، که دی تروّس تیره وی نو غږ وکړه چی دازما مجبوری ده، دغه می مشکلات دی ، پدی کی تاسی کمک راسره وکړی، پروسږ مونږ درته وویل چی در سره کومك یو، دالله(ج) په ذات قسم ، خولدی کوټی دی وایستلو په هغه بله کوټه کی مو خبری وکړی، تا وی دابه کوټه ده ، حمزه ، ته اوزه وو سره ناست وو، درته ومی ویلی چی دالله (ج)په ذات قسم کوو، چی مونږ کومك درسره کوو تردی در تیر یو چی ته فارسی وایی مونږ پښتو وایو، تردی در تیر یو چی ته دشمال یی مونږ دجنوب یو، تردی در سره تیر یو چی تا خپل خلك درولی مونږ ته دی موقع نده راکړی، تر مرگه پوری تعهد درسره کوو، دالله په کتاب درسره نوشته کوو چی دالله (ج) دین راسره ومنه دالوی کتاب ومنه، ددی عمل ته ځان حاضر کړه ، مونږ درسره کومك یو.

نور هغه دمرکزونو حال دی، وزیر دتعلیم اوتربیه ورمه ورځ راغی، دغه څلورپنځه کسه ملایان ناست وو، وایی زما په دفتر کی یوه ښځه ده سلطانه یی بولی، سلطانه رئیسه ده دښځو، وایی مونږ مکتوب پیدا کړ چی عجیب مکتوب ورته رالیږلی چی سلطانی ۱٤ ډیری ښایسته ښځی په ډیرو نفیسو لباسو کی باغ بالا ته راواستوه، دا اوس په تعلیم اوتربیه کی رئیسه ده، یا امثال ددی داسی په سوُنو او په زرگونو ښځی دی، نو زموږ دغه آخری عرض دی تاته، چی که دغه لاړ دقبلی له مونږ څخه ورکه وی، نو مهربانی وکړه، خپله یی رابنیی یایی په بل چا رابنیی ، اوکه چیری داسی وی چی لاره دی غلطه کړی وی، عزت واخیستلی، حیثیت دریاندی زور شو، خواهشات دریاندی زور شوه، هغه غربت هغه فقر اوهغه خدمت داسلام درڅخه هیرشو، نو دا اجتماع خو اسلامی اجتماع ده، دانه یوازی دشمال والو ده، نه یوازی دجنوب والو ده دانه یوازی دربانی اودسیاف ده، پدی کی قربانی گرد افغانستان ورکړی ده، دالله پر دین باندی حکومت کی برخه اخلو، که تر مرگه پوری مو برخه واخیسته بیا راباندی دملامتی غږ وکړه.

دین در څخه غواړو دا اجتماع خرابه ده ، دا اسلامی نده نه دا اسلامی حکومت دی، داڅوارلس میاشتی شپاړس میاشتی مو سکوت کړی وو توقف مو کړی وو، له گردی دنیا سره مو مقابله اخیستی وه چی دا اسلامی حکومت دی، تاسی ددی حمایه وکړی، ددی مقابله او مخالفت مه کوی اوس په خپله دی ته مجبور یو ، تاته مو وویل نورو مشرانو په مخ کی، له سیاف اومولوی محمد نبی صاحب څخه داگیله ده ، چی که ستاحکومت اسلامی دی مونږ ته دی ثابت کړی، چی زموږ دا اسلامی حکومت دی، مونږ درسره ملگری یو، اوکه چیری اسلامی ندی، دامخلوط حکومت غیر اسلامی دی، دملحد دولت بقایایا پر حکومت کی مقرر دی دکفر بقایاحق نلری، یا دی درته ووایی چی ته اصلاح شی، مونږ او دوی او تاسی په گډه سره یوی قبلی ته مخ کوو، لمونځ په

**ترتا لوی تخت اوتاج دظاهرشاه او داوُد شاه وَ ، ستانږ ددوو رځو حکومت دی هغه هم گرده دنیا در سره مخالفه ده، دهغو داسی فرعونی حکومت وو چی دهغو په مخ کی چاکلمه نشوای ویلای**

جماعت کوو، اوکه چیرته یی نه منی لکه چی داتر اوسه دی ندی منلی، بیا دوی ته هم وایوچی داکوم کسان دی چی وایی مونږ اسلام غواړو، بیا به له تاڅخه جلاکیږی مونږ به درڅخه جلاکیږو ترهغه وخته چی الله (ج) وس راکړ تر هغه ځایه به درسره مخالفت کوو او بیا به په به سره ټکرکیږو ترهغه ځایه چی الله (ج) اجازه راکوی، دغه اخری مجلس دی درته راغلی یو، که ضعیفه یی اویامشکلات لری، غږ وکړه که در سره کوك نشوو بیامونږ ته ووایه چی مسلمانی مونه درلوده غلط خلك یاست او په غلطه لار روان یی، لاړ شی، اوکه کومك درسره کوو، تعاون کوو، او دالله (ج) دین درڅخه غواړو، نه له تاڅخه عزت غواړو، نه ستاڅخه دولت غواړ . نه ستا په الله (ج) باندی تکیه کوو چی الله (ج) ته څه منظوره وی هغه به راپیښیږی.

سبحان ربك رب العزت عمایصفون.

# مداخله خارجی درافغانستان

محترم احمد شاه مسعود وزیر دفاع اسبق افغانستان طی مصاحبه ئی باخبرنگاران پاکستانی، اداره استخبارات نظامی پاکستان و همچنان دولت ایران متهم بدخالت درامور داخلی افغانستان نمود. این مصاحبه دربعضی از روزنامه های انگلیسی زبان پاکستان به نشررسید.

تا آنجا که قضیه به مداخله کشورهای خارجی رابطه می گیرد اظهارات احمد شاه مسعود مورد تائید است اما اختلاف ما بامسعود در این است که وی دامنه مداخله خارجی را محدود تر ساخته و فقط دوکشور را در آن ذیدخل دانسته است درحالیکه دامنه این مداخله بسیار وسیع تر است ، برای درك بهتر ابعاد مداخلات خارجی در افغانستان نخست به زمینه هایی که مداخله راممد و مددگار است باید توجه شود ، عامل نخست درین رابطه اختلاف میان تنظیم های جهادی است.

بنظر ما اگر کسی ازمداخله دست های خارجی درامور داخلی افغانستان نگرانی دارد و صمیمانه وصادقانه قصد قطع این مداخلات را می نماید باید بیش از دیگران درجهت رفع اختلافات تلاش ورزد ، شخصی که مداخله خارجی را برای تمامیت ارضی افغانستان و بقای این کشور مضر میداند باید این نکته را نیز در یابد که قطع این مداخلات از راه رقابت های نظامی بین نیروهای داخلی نه تنها ممکن نیست بلکه مداخله خارجی درنتیجه چنین رقابت ها زمینه پیاده شدن می یابد.

در افغانستان نیز ما چنین وضعی را شاهد هستیم، وقتیکه نیروهای شورای نظار با ائتلاف با ملیشه های شمال، عناصری ازجناح پرچم و ستمی ها از یکطرف و حزب وحدت از جانب دیگر درکابل قدرت را دردست گرفتند، همه میدانستند که این کار کاری تصادفی نبود بلکه نتیجه ماهها مذاکره و تفاهم در داخل وخارج بود. کمونیست های مؤتلف باشورای نظار این تصمیم را بصورت مستقل اخذ نکردند بلکه درین رابطه با اربابان شان در روسیه مشوره داشتند ، همانگونه که حزب وحدت درین رابطه با ایران مشوره داشت هیچکس هر قدر هم که سهل انگار باشد نمیتواند از این واقعیت چشم بپوشد که روسیه و ایران درین تحول نقش مستقیم داشتند و عمال آنان در افغانستان بصورت مستقل هرگز جرئت مذاکره باشورای نظار نداشتند چه رسد به ائتلاف ومشارکت در قدرت.

درنخستین روزهای بعد از سقوط نجیب نخستین محموله، پول افغانی که در روسیه به چاپ رسیده بود به شورای نظار درکابل تحویل داده شد این مسئله را روسها نیز تائید کردند اما گفتند که قرار داد چاپ و ارسال پول با رژیم سابق عقد شده است ولی آنان به ارسال پول به رژیم جدید تاختم قرار داد ادامه خواهند داد.

نکته دیگری که به فرد فرد ازمجاهدین معلوم است اینست که رژیم سابق به تمام نیروهای خود در سراسر افغانستان دستور داده بود که خودرا به قوماندانان نیروهای شامل در ائتلاف

تسلیم نمایند، بطور مثال در پغمان ملاعزت قوماندان شورای نظار آشکارا با خاد رابطه داشت و مجاهدین پغمان اورا ازمنطقه رانده بودند همه تنظیم ها وی را بعنوان یك جاسوس دولت می شناختند ولی قرقه، قرغه و پوسته های کمربند غرب کابل دریك شب همه به ملاعزت تسلیم میشود. درقندها ملانقیب بدون جنگ شهر راتصرف می کند و راه ورود همه مجاهدین دیگر رامی بندد، درپکتیا قوای دولت دستور می یابند که خودرا فقط وفقط به مولوی منصور تسلیم کنند.

این نکه کاملاً آشکار است که روسها نمی خواستند بعد از سرنگونی نجیب درافغانستان دولتی بوجود آید که برای جمهوری های آسیای میانه ایجاد خطر نماید و شورای نظار نه تنها این شرط روسها را پذیرفت و ملیشه های شمال را بعنان جزء از نیروهای مسلح دولت اسلامی قلمداد کرد بلکه حیات و مصئونیت کمونیست های جناح پرچم وستم ملی را نیز تضمین

زنده نشود این مسئله بصورت شرم آوری سکوت گذارده شد.

انعطافی که در برابر کمونیست ها نشان داده میشود واقعا حیرت آور

شهید ضیاء الحق مسئلهء افغانستان را مطرح کرد. باید تلاش های زیاد درجهت جلب کمك به این مهاجرین

**درنخستین روزهای بعد از سقوط نجیب نخستین محمولهء پول افغانی که در روسیه به چاپ رسیده بود به شورای نظار درکابل تحویل داده شد این مسئله را روسها نیز تائید کردند اما گفتند که قرار داد چاپ و ارسال پول با رژیم سابق عقد شده است ولی آنان به ارسال پول به رژیم جدید تاختم قرار داد ادامه خواهند داد.**

است، مزدك و کاویانی آزادانه به کابل می آیند و هفته ها را در به اصطلاح پایتخت حکومت مجاهدین سپری می کنند، باهمفکران خویش به مذاکره می پردازند و آنانرا تنظیم می کنند و مجدداً به مزار شریف باز میگردند، امنیت آنان را نیز نیروهای مسلح دولت اسلامی بعهده دارند.

جالب اینجاست که یکی از وزرای دفاع سابق رژیم کمونیست یعنی جنرال رفیع درکابل دستگیر گردید خبر دستگیری وی را رادیو کابل با آب و

صورت می گرفت تا آنان بعلت مشکلات طاقت فرسا دردیار هجرت به تسلیم شدن به کمونیست ها مجبور نمی شدند اما دولت نه تنها درین جهت قدمی بر نداشت بلکه تعمداً ازیکطرف برای مهاجرین مشکل ایجاد کرد و از طرف دیگر باروسها و کمونیست های تاجکستان برسر میز مذاکره نشست و مسئله بازگشت مهاجرین رامطرح نمود.

درین رابطه میتوان مثال های فراوان ارائه کرد، جای تردید نیست که امرز کشور ما صحنه کشمکش هائی است که در آن کشورهای همسایه نقش اثر تردید ناپذیر دارند اما مداخلهء روسها بعد از سقوط نجیب ازطریق ائتلاف شمال وارد مرحله جدیدی گردیده است، بنابر این محدود ساختن مداخله خارجی به کشورهای ایران و پاکستان فقط وسیله ئی برای پنهان نمودن مداخله یی است که روسیه از طریق ائتلاف شمال در افغانستان انجام میدهد، این مسئله است که ملت مسلمان و مجاهد افغان از آن کاملاً آگاه است و تاریخ نیز آنرا بخاطر خواهد سپرد.

**انعطافی که در برابر کمونیست ها نشان داده میشود واقعا حیرت آور است، مزدك و کاویانی آزادانه به کابل می آیند و هفته ها را در به اصطلاح پایتخت حکومت مجاهدین سپری می کنند، باهمفکران خویش به مذاکره می پردازند و آنانرا تنظیم می کنند و مجدداً به مزار شریف باز میگردند**

نمود ، ببرك کارمل بعد از استقرار حکومت مجاهدین با احترام کامل راهی مزار شریف گردید.

در رسانه های گروهی تحت کنترول دولت هیچ مطلبی علیه کمونیست ها به نشر نمی رسد حتی وقتی قبر های دستجمعی مجاهدین در پولیگون پل چرخی کشف شد بخاطر اینکه خاطرات جنایات کمونیست ها در ذهنیت ها

تاب فراوان گزارش داد ولی بعدا رفیع بی سروصدا از زندان آزاد شد واجازه یافت به هرکجاکه میخواهد برود!

مسئله تاجکستان وظلمی که برمسلمانان درین کشور صورت گرفت ومی گیرد و مشکل مهاجرین تاجیك در افغانستان، مسئله است که باید دولت مجاهدین درکابل آنرا درسطح بین المللی همانگونه مطرح میکرد که

له بهرنیو منابعو څخه په استفادې

# په اسلامي نړۍ څه تېرېږي؟!

احمد ضیاء «رحیمزی»

په نننۍ نړۍ کې تر یوه میلیارد زیات مسلمانان ژوند کوي، او تر پنځوس زیات آزاد حکومتونه لري، هر ډول وسایل ور سره دي، او دځینو مسلمانو هیوادونو پوځ په جنگي مهارت او حربي پوهه کې خورا ښه شهرت لري، ولې ددې ټولو سره سره نن په ټوله نړۍ کې مسلمانان قتل عام کېږي او د پردیو دزور اوظلم ښکار دي.

په بوسنیا کې چې نن څه تیرېږي هغه له هیڅ مسلمان څخه پټ ندي، مسلمانان پدې ملك کې قتل عام کېږي، معصوم ماشومان ذبحه کېږي، دمسلمانو ښځو پر عصمتونو تیري کېږي، اما دنړۍ هیڅ مسلمان ملك ددې عام جنایت او قتل عام څخه دمخنیوي لپاره نه راورانډي کېږي.

نړیوال کفر دمسلمانانو دبې حسی او بې مسؤلیتي په لیدو سره په متحده او یوموټي توگه راوړاندي کېږي، او خپل پلانونه عملي کوي.

نن فلسطیني مسلمانان دهوا دمرغانو په څیر ښکار کېږي، دفلسطیني ځوانانو سینې داسرائیلي غاصبو عسکرو په گولیو غلبیل غلبیل کېږي، په کشمیر باندې دهندي عسکرو دظلم ناروا او جنایاتو لړۍ ورځ په ورځ پراخېږي، دکشمیریانو کور او کلیوته اور ورته کېږي، او دباپردې اومحجوبو ښځو بې حرمتي اوبې عزتي دهندي وحشي عسکرو ورځنی معمول گرځېدلی.

په جنوبي لبنان کې اسرائیلي الوتکې دحزب الله مبارزینو دسنگرونو دله منځه ورلو په بهانه وحشیانه بمباري کوي چې پوره یوه اونۍ دوام مومي.

دجنرال فرح عدید دمرکزونو دټکولو په نامه امریکایي الوتکې دصومالیا په خاوره داسې بمباري کوي چې یوازې په یوه ورځ کې (۱۰۰) کسه مظلوم او قحطي وهلي صومالیایان پکې مړي یاټپیان کېږي؛ او.......

په روانه پېړۍ کې دشوروي دامپراطورۍ نړېدل، هغه غټه زیان ؤ چې نړۍ او په تیره بیا اسلامي نړۍ ترې متأثره شوه، ددې امپراطورۍ په نړېدو سره په نړۍ کې دقدرت توازن متزلزل شو، نن هر هغه غټ او کوچنۍ هیواد چې دامریکا سرپرستي ورسره ده، ځان یو وړوکی ابرقدرت گڼي، نه یوازې دخپلو گاونډیو هیوادو په سرحداتو تیري کوي، بلکه ددې« نیك عمل» لپاره دتبلیغ او تربیت اهتمام هم کوي.

په خپله دامریکا حوصله هم وروسته له هغې چې د( نړۍ دیوازیني قدرت) په توگه یاده شوې ډېره کمه ده، چې دهغې ښه مثال په عراق باندې دامریکایي الوتکو وروستي بمباري ده.

دامریکا دپخوانی جمهور رئیس «جارج بوش» دوژنې په تورنیول شوي کسان لادکویټ په محاکمو کې تر محاکمې لاندې وو، اودهغوی جرم لانه وو ثابت شوی اما امریکا پدې خیال چې گواکې دعراق حکومت ددې توطیې!! مشري په غاړه لري، دعراق په خاوره راکټونه او بمونه واورول.

همدارنگه دامریکا تر سرپرستي لاندې داسرائیلو غاصبو حکمرانانو دروان کال دجولای په وروستي هفته کې دلبنان په جنوب کې دتش په نامه« امنیتي علاقې» او دحزب الله دمبارزینو پر مرکزونو داسې وحشیانه بمباري وکړه چې ساري یې کم لیدل شوی، دغه بمباریو چې یوه اونۍ یې دوام درلود. دسیمې بې دفاع اوسیدونکي دیته اړ کړل چې خپل کوڅونه پریږدي، او په کوم لور یې چې مخه شوه لاړ شي.

د« تایم» جریدې یوه مبصر« بروس نیلن» داسرائیلي ځواکونو ددې حملې په هکله لیکلي وو:

« کله چې په مینځنی ختیځ کې دتوپونو خولې په یوه دم خلاصې شوې، داسرائیلو له سرحداتو څخه دبمونو او راکټونو، باران پیل شو، نو داسې ښکاریده چې اسرائیلو یوه منظمه حمله پیل کړې اودسولې خبرې اترې نورې پای ته ورسیدې، او اسرائیل اوس دمینځنی ختیځ دنورې ځمکې دنیولو لپاره دتوپونو او بمونو په پناه کې پرمختگ کې»

داسرائیلو حکومت ادعا درلوده چې دغه پنځه ورځنی مسلسله بمباري دحزب الله ډلې ته دسبق ورکولو لپاره وه، او اوس چې څه دپاسه دری لکه مهاجرین دبیروت خواته تښتي، نو داسرائیلو غوښتنه داده چې سوریه باید دحزب الله ډلې له سرپرستۍ څخه لاس واخلي، اوایران لدې نه منع کړي چې حزب الله ته نورې وسلې او په تیره بیا « کت یوشا» نومې راکټونه ور نکړي.

که څه هم چې اسرائیلي صدر اعظم ددې اخطار ورکولو په خت پدې ښه پوهیده، چې نه خو چریکانو ته سبق ورکول کیږي، او نه دکت یوشا، دراکټونو په چلولو کې څه بندیز راتلای شي.

د۱۹۸۲ کال دجگړې تر اور بند وروسته کله چې اسرائیلو خپل پوځونه په شاه بوتلل، نو په ۱۹۸۵ کال کې دلبنان

په جنوب کې دغه سیمه د« امنیتي زون» په نامه و نومول شوه.

* * *

دلبنان پر خاوره داسرائیلو ترېمبارۍ تقریبا دوه میاشتې وروسته د سپتمبر په ۱۲ مه نیټه دامریکا دسپینې ماڼۍ په چمن کې دفلسطین دآزادۍ غوښتونکې سازمان مشر یاسرعرفات دعربانو له ازلي اوابدي دښمن اوداسرائیلو له صدر اعظم اضحاك رابین سره یودبل دپه رسمیت پېژندنې اودفلسطین دمحدودې خپلواکۍ یوه معاهده لاسلیك کړه.

پدې ورځ یا سر عرفات پداسې حال کې چې مصنوعي خندایي په شونډو جوړه وه، داسحق رابین سره دهغه میز ترشا ولاړ وو په کوم چې په ۱۹۷۸ کال کې انور السادات ( دمصر دهغه وخت جمهور رئیس) له اسرائیلو سره دامریکا په مینځګړیتوب د« کمپ دیوید» تړون لاسلیك کړی وو.

(۱۵) کاله وړاندې کله چې انور السادات دکمپ دیوید تړون لاسلیك کړ، یاسر عرفات ویلي وو« انور السادات دسیناد‌ښتې دیو موټي ریګ لپاره فلسطین خرڅ کړ.»

تردې معاهدې وړاندې دسپتمبر په نهمه په تونس کې دفلسطین دآزادۍ غوښتونکي سازمان یوه ویاند« حسان اصفر» ددې تنظیم له لورې داسرائیلو دپه رسمیت پېژندنې اعلان کړی وو.

ددې معاهدې له مخې به دفلسطین دآزادۍ غوښتونکې سازمان داسرائیلوپرضد وسله واله مبارزه پای ته رسوي. په مقابل کې به اسرائیل داردن دسیند په لویدیزه غاړه کې د جریکو «اریحا» په ښار کې او دغزې په تړانګه کې فلسطینیانو ته محدوده، خپلواکي

ورکوي.

که څه هم داسرائیلو دغاصبو حکمرانانو او دفلسطین دآزادۍ غوښتونکې سازمان ترمینځ دغه تړون لاسلیك شوی او ددواړو لوریو یوبل په رسمیت هم پېژندلی ، خودفلسطیني مسلمانانو ډېرې ډلې اوس هم ددې تړون سره خپل شدید مخالفت څرګندوي.

دفلسطیني مبارزینو اسلامي سازمان «حماس» ددې تړون له لاسلیك سره سم اعلان وکړ چې دوی به په هیڅ صورت دعرفات دغه خاینانه اقدام ونه مني.

همدارنګه دیوې بلې فلسطیني ډلې مشر احمد جبریل چې په سوریه کې اوسېږي اخطار ورکړی چې عرفات ته به ددې خیانت په جرم هماغه سزا ورکړل شي کومه چې انور السادات ته دکمپ دیوید دتړون دامضاء په جرم ور کړل شوه.

داحمد جبریل په مشرۍ دفلسطین

عرفات او سادات

دآزادۍ ددیموکراتیکې جبهې نه علاوه، دجارج حبش په مشرۍ دفلسطین دآزادۍ لپاره دخلکو جبهې هم دیاسر عرفات دغه اقدام غندلی اوهغه یې په کلکه ردکړی.

همدارنګه داهوندال ترمشرۍ لاندې دفتحې سازمان انقلابي شورا په بېروت کې دیوې اعلامیې په صادرولو سره یاسر عرفات غدار بللی او دهغې دقتل غوښتنه کړې، بل لورې ته په خپله اسرائیلو کې دمتعصبه یهودیانو عکس العمل ددې

تړون په وړاندې خورا سخت وو.

ددې تړون داوازې له خپریدو سره سم په نیول شویو عربي ځمکو کې میشته یهودیانو په پراخو مظاهرو لاس پورې کړ، دغه مظاهره کوونکو « اضحاك رابین» له اسرائیلو سره په خیانت او غداری تورن کړ.

تر دوهمې نړېوالې جګړې وروسته په جزیرة العرب کې داسرائیلو دحکومت جوړېدل اودفلسطینیانو بې کوره کېدل بې له شکه داسلامي امت لپاره یوه دردوونکې سانحه وه. په اصل کې دا دهغه اروپا یې استعماري قوتونو یو سوغات وو چې دمینځنۍ ختیځ څخه دوتلو په وخت یې داسلامي نړۍ په ملاکې دیوه خنجر په څېر خښ کړ.

ورسته بیا دغه ستونزه داسلامي نړۍ او اروپا له سرحد څخه ووته او ددوو نړېوالو ابرقدرتونو په مینځ کې دزور آزموینې میدان وګرځېده.

دفلسطین آزادۍ غوښتونکې سازمان چې په ۱۹٤٦ میلادي کال کې تأسیس شوی، اسرائیلو یو تروریست ټولګی بللواو په نیول شویو سیمو کې یې ددې سازمان پرفعالیتونو بندیز لګولی وو.

په تېرو دیرشو کلونو کې ددې سازمان غوښتنه داوه چې اسرائیل باید ختم شي، او دهغې پرځای دفلسطین خپلواك هیواد جوړ شي، اودهمدې غوښتنې پر بنیادوو چې آزادۍ غوښتونکې سازمان داسرائیلو هیواد په رسمیت نه پېژندلو.

دواشنګټن په تړون کې دانده څرګنده شوې چې دمسلمانانود لومړۍ قبلې او دمسلمانانود تاریخي ښار بیت المقدس سر نوشت به څه وي، او هغه یونیم لك یهودیان به څه کېږي چې په تېرو څو

کلونو کې په نیول شویو عربي سیمو کې ځای پر ځای دي خو په هماغه ورځ چې په سپینه ماڼۍ کې داتړون لاسلیك کېده دغزې په تړانګه کې ددې تړون پرضد داسې مظاهرې وشوې چې اسرائیلي پوځیان مجبور شول پر هغوی ډزې وکړي، داسرائیلي پوځیانو ددې ډزو له امله لس تنه فلسطینیان مړه او په لس هاوو نور ټپیان شول، دفلسطیني مسلمانانو تر مظاهرو یوه ورځ وړاندې په نیول شوي بیت المقدس کې داسرائیلو دصدر اعظم دکور په وړاندې په نیول شویو سیمو کې دځای پر ځای یهودیانو له خوا هم ددې تړون دغندنې په وجه پراخه مظاهرې وشوې، دغه یهودیانو چې صدراعظم اضحاك رابین یې له اسرائیلو سره په خیانت تورناوه، اوغوښتل درابین کورته ننوزي، چې لدې امله اسرائیلي عسکر اړ شول ترڅو پر مظاهره چیانو لومړی اوبه، اوبیا اوښکي بهونکي ګاز استعمال کړي ، داددې تړون لومړنی سوغات وو، داچې تردې وروسته به څه پیښیږي ، هغه لابیلې دي..

* * *

دبوسنیا پرمسلمانانو باندې دسربي وحشي ځواکونو دظلم او جنایت لړۍ، دهرې ورځې په تیریدو سره پراخیږي.

ددې ظلم ښکار شوي ماشومان، ښځې اوسپین ږیري تر اوسه هم ددې په انتظار دي چې اسلامي نړۍ له کوم ګوټ نه به یو ږغوروونکي دهغوی مرستې ته راودانګي.

دانګلستان په یوه روغتون کې دمرګ او ژوند په کشمکش کې پرته بوسنیایي ماشومه« ارما » دسربانو دظلم او وحشت یوه ښه نمونه ده.

دغه ماشومه له خپلې مور سره روانه وه ترڅو د«سرایوو» په ښار کې دسره صلیب دموسسې له دفتر څخه دځان لپاره څه خیراتي جامې تر لاسه کړي، ناڅاپه یوه چاودنه کیږي، مور یې پدې چاودنه کې وژل کیږي، او دا خپله دچاودنې دشدت له امله لرې غورځیږي، ددې پنځه کلنې ماشومې نخلې دملاهډوکې سخت ضرب لیدلی او کولمې یې زخمي شوي دي.

دلویدیزې نړۍ دعامه ارتباط وسایلو، بریتانیا ته دبوسنیایي زخمي ماشومې راتګ د« جان میجر» دیوه بشر دوستانه

اقدام !!! په نامه په پراخه پیمانه منعکس کړ، او داخبره یې عنوان کړه چې ګواکې که لویدیز حکومتونه وغواړي نو دجګړې شدید ټپیان له بوسنیا څخه انتقالولای شي.



آیا صربان دانسانیت دعوه کولای شي! وګورئ دځناورتوب نمونه(بوسنیایي مظلوم مسلمانان چې له شهادت وروسته دبلډیې په موټر کې چیرته لرې غورځول کیږي.

خو اساسي پوښتنه داده چې آیا دبوسنیا بحران یوازې په همدې ټپیانو پورې محدود دی کوم چې دسربیانو دګولیو نښه ګرځي! اوکه بیا داهم ومنو چې ددې بحران اساسي موضوع ددې ټپیانو انتقال او دهغوی تداوي ده نو بیاپنځه کلنې معصومې«ارما » ته ولې په خپل وخت طبي مرسته ونه رسول شوه؟

د« نیوزویك» جریده لیکي: « ارما » لس ورځې دمرګ او ژوند په کشمکش کې پرته وه، کوم رغتون ته یې چې دا دتداوۍ لپاره وړې وه ، هلته نه بریښناوه او نه اوبه، او دژوندانه دغه بنیادي ضرورتونه هم دسربیانو له خوا قطع شوي وو.»

آیا په سرایوو ښار کې یوازې «ارما» ټپي شوې وه؟ دنړیوالو روغتیایي موسسو حساب او احصایه ښیي چې په همدې وخت په سرایوو کې (٤١) ماشومان او نوي ځوانان دژوند او مرګ په کشمکش کې په روغتونونو کې پراته وو،

پداسې حال کې چې پردې سربیره د (۳۹) نورو مریضانو نومونه ندي افشا شوي.

همداراز دملګرو ملتو سازمان دمهاجرینو دعالي کمشنرۍ یوه مامور «جل رتر» څرګنده کړه:« دسربیکا، ګورازدې، او ولتر ښارونو په روغتونونو کې ګڼ شمیر ماشومان، دسربي ځواکونو دګولیو له ټپونو سره مقابله کوي ، ولې ددې امید نلري چې دوی به وژغورل شي که نه، او یابه په کومه محفوظه سیمه کې ، کوم ښه روغتون ته انتقال شي اوکه نه!»

دبوسنیا اوسیدونکی یومسلمان انجنیر« یوسف کرزیوك» دبوسنیا دوضعې په هکله وایي:

« اوس دبوسنیا ټول هیواد دمرګ په ویره او ډار کې ژوند کوي، یوازې دسرایوو په ښار کې «٤» لکه انسانان دخپل ځان دژغورنې لپاره هجرت کولو ته تیار دي ، ولې داور له خولې څخه دهغوی دایستلو او محفوظو مقاماتوته دهغوی درسولو لپاره هیڅ انتظامات نه کیږي. »

* * *

دلبنان، فلسطین او بوسنیا په څېر

دنیول شوی کشمیر مظلوم مسلمانان هم دتیرو ٤٥ کلونو په موده کی دهندی لښکرو دظلم ، تاړاك، او تیری ښکار دی.

که څه هم پر کشمیریانو باندی دهندی پرغلگرو لښکرو دظلم اوستم تصویرونه ټولی نړۍ ولیدل، ولی د ډله ایز ارتباط وسایل بیاهم دډیرو هغه واقعاتو له انعکاس اوددیرو هغه تصویرونو له وړاندی کولو څخه عاجز دی، کوم چی ددی جبر او تشدد زړه بوږ ونونکی مناظر په سمه توگه منعکس کولای شی.

کله چی پر کشمیری مسلمانانو دهندی حواکونو زور او ظلم زیاتیری ، هغوی پداسی حال کی چی خپل سرونه یی په لاس کی نیولی وی، له لوړو او هسکو غرونو څخه تیریږی، او پاکستان ته پناه راوړی.

دغه کشمیری مظلوم مهاجرین وایی:« په کشمیر کی تر ټولو زیات ظلم هغه وخت وی کله چی هندی عسکر کلی محاصره کړی.

هندی عسکر دشپی له یوی بجی نه وروسته کلی محاصره کوی، بیا دجومات د لاوډسپیکر له لاری اعلان وکړی چی کلی محاصره شوی، او هیڅ څوك باید له خپل کورنه ونه وزی، وروسته بیا دغه وحشیان دکورونو خلك یو یو بهرته راباسی، دښحو اونارینه وو جلا جلاقطارونه ودروی نارینه په وهلو وهلو مرگ ته نږدی کړی، او له هغوی څخه پوښتنی چی په کوم کور کی مجاهدین شته، یاڅوك له مجاهدینو سره رابطه لری؟

همدا راز له ښحو سره هغه سلوك کوی چی خوله او قلم دهغی له بیان څخه عاجز دی».

دکشمیری آزادی غوښتونکو مجاهدینو یوه مشر څه موده مخکی دپاکستان له مشهوری اونیزی« تکبیر» سره په خپله مرکه کی دکشمیر داوسنی وضعی دتشریح په ترځ کی ویلی وو:« که څه هم کشمیری مجاهدین هڅه کوی چی له هستوگنو سیمو څخه لری دهندی عسکرو سره مقابله وکړی ولی هندی عسکر پداسی اقداماتو لاس پوری کوی چی ضرر یی مستقیما ولسی خلکو ته متوجه دی.»

غلام نبی نو شهری ددی مرکی په ترځ کی وایی:

« کله چی هندی لښکری دکشمیریانو کوم کلی محاصره کړی، نودسیمی خلك مجبوراً دهغوی مقابلی ته راولی، دجگړی په ترځ کی اکثراً هندی لښکری په شاتگ ته مجبوریږی، خودغه وحشی لښکر دپه شاتگ په دوران کی دخلکو وینی تویوی، دظلم او وحشت انتهایی حدته رسیږی، او پر نابالغه نجونو په ډله ایزه توگه تیری کوی، همدارنگه له هری څوانی ښځی سره لس یا پنځلس تنه وحشیان په یوځل بد کاری کوی، وروسته بیا هغه مظلومه نجلی وژنی یا په ژوند دهغی دبدن غړی تری پری کوی.

حتی په ځینو څایونو کی کله چی وحشی هندوان دیوی ښځی پر عصمت تیری وکړی، نوبیا دهغی دبدن غړی تری پری کوی او سپوته یی اچوی.

دوسلی دپلټنی په بهانه دمسلمانانو په هدیرو کی تازه قبرونه لوټوی، او دمسلمانانو مړی دښځی اونارینه له تمیز نه پرته بهرته غورځوی، دجوماتونو سوځول اود قران مجید بی احترامی اوس په کشمیر کی دهندی لښکرو معمول گرځیدلی.»

غلام نبی نو شهری وایی:

« پر کشمیر یانو باندی په ظلم اوتیری کی یوازی هندی عسکر ندی مصروف ، بلکه نور اسلام دښمنه ملکونه او قوتونه هم له هغوی سره اوږه په اوږه شریك دی.

تیرکال په کشمیر کی دحزب المجاهدین دولی څوانانو دوه اسرائیلی کماندوگان ونیول چی په څرگنده یی اعتراف وکړ چی هغوی په رسمی توگه داسرائیلو حکومت دهندی لښکرو مرستی ته رالیږلی وو».

هندی واکمن دټولو نړیوالو نورمونو اوفیصلو پر خلاف پر کشمیری مظلومو مسلمانانو خپل زور او ظلم ته دام ورکوی، او ددی ځای پر مسلمانو اوسیدونکو خپل فشار زیاتوی.

دکشمیر آزادی غوښتونکو مبارزینو دیری دقیقی احصایی له مخی اوس په کشمیر کی (٦) لکه هندی پوځیان میشته دی.

دکشمیر، بوسنیا، فلسطین په څیر نن دنړی په هرگوټ کی مسلمانان دمظلومیت په حال ژوند کوی او له یوه لوری نه ترفشار لاندی دی، دصومالیا، فلپاین، برما، او دډیرونورو هیوادو مسلمانان هم دی چی دلته یی داحوال ذکر نشته ولی دهغوی مظلومیت داستان به هم تر دی کم نه وی.

# د ادب پلوشې

## فاتح او تاریخ

تاریخ: داڅوک یې چې زما په سینه دې دمرگونو لویې پیل کړې ـ
څوک یې چې پر ټټر مې داسې حادثې جوړوې چې سر لیکونه یې په وینو لیکل کیږي، څوک یې چې په غیږ کې مې هدیرې جوړوې، څوک یې...؟!....

فاتح: هن، ودې نه پیژندم! فاتح یم فاتح! حماسې جوړوم، ستا پر ټټر د خپلو غیرتونو یادگارونه جوړوم.

تاریخ: ورک شه داسې یادگارونه چې په وینو او غوښو جوړ شي، رنگ شه داسې منارونه چې دخښتو او خټو په ځای یې انساني ککرې وینې او غوښې مساله وي، آخر یادگارونه خوښل وړ هم جوړیدای شي...

فاتح: گوره بیا هم پوه نه شوې زه فاتح یم او دفتحې منزلونو ته دکنډوالو، وینو او انساني ککرو له پاسه ورتیریږم.

تاریخ: ښه دازماپه ټټر وراني جونگړې دچادي چې همدا اوس لمبې او لوگي ترې خیژي؟...

فاتح: کومې جونگړې، کوم لوگي؟!

تاریخ: ولې ستا داولس او ستاد خپلو هیوادوالو کوډلې او جونگړې درته ښیم...

فاتح: دابايد وراني شي، داخټین کوروته نو څه په کار دي؟

تاریخ: ولې داخودي دخپل اولس دي.

فاتح: زما اولس مانه منې همدایې سزاده.

تاریخ: داپه وینو رنگین داستانونه..... دا دوړلو او وراني لویه آخر دڅه لپاره ده؟

فاتح: بس بس له فاتح نه څوک داسې پوښتنې نه کوي.

تاریخ: تاخو ویل چې زه دې په سینه دغیرتونو او همتونوداستانونه او حماسې لیکم، خوته لگیایې زما له سینې دخپل اولس دشهامتونو او رشادتونو یادگارونه ورکوې.

فاتح: پوه نه شوم واضح یې وایه.

تاریخ: داحمد شاه بابا توره، داکبرخان تومانچه دمیوند او طاق ظفر څلې څه شول؟!!

فاتح: بس بس هغه زنگ وهلې توره او تومانچه خونور زنگونو خوړل، نوریې ارځښت له منځه تللی ؤ ښه شو چې کباړ شول.... دطاق ظفر اومیوند څلي هم څه لویه خبره نه ده، آخر دڅو خښتو او ډبروڅلي وو څه وشول چې وران شول، هغه هم زما دفاتحانه گامونو لاندې کنډر شول، آخر مادمخه هم درته وویل چې زه فاتح یم او دفتحې منزلونو ته لاره له کنډوالو تیریږي....

ماته پخواني مه را یادوه ، زما یادونه او حماسې ذهن ته سپاره ته اوس باید زما یادگارونه وساتې ستا سینه نور باید زما له کار نامو ډکه شي.

تاریخ: ته خود خپلو کار نامو او حماسو علامې هم ورکوې ، دخپلو فتحو او بریو پلونه هم ړنگوې!

فاتح: عجیبه ده زه کله داسې کوم؟!!

تاریخ : دغلام جان ، میرانشاه، لنډي کوتل او نورو بازارونو غیږې په څه شي ډکې دي؟ ستا داولس دیوې تیمې لسبزې غورځو پرځو او قیامونو یادگارونه څه شول؟

هغه ټانگونه او توپونه څه شول چې ستا دشهیدو همسنگرو د شهامت او اتلولیو یاد یې ژوندی ساتلی ؤ.... هغه شړیدلې شوبلې او وسلې څه شوې چې اوس زما په ټټر ستا پر همت او غیرت شاهدي و وایي؟.....

فاتح: لکه چې سم دې نه یم پیژندلی، ومې ویل فاتح یم فاتح! له فاتح نه څوک داسې پوښتنې نه کوي.

تاریخ: زما په غیږ کې دډیرو فاتحانو یادگارونه شته چې یوله بله زیات توپیر لري،څوک نیک نام دي څوک بدنام، زما پر سینه لیکلې داستانونه وگوره، پند ترې واخله او دراتلونکې لپاره یې دلارې مشال کړه....

فاتح: بس بس ماته نصیحت مه کوه، زه فاتح یم او ته مجبور یې چې زما کار نامې خوندي کړې زه فاتح یم او نیك نام او بدنام پکې نه پیژنم!

نور ماته غوسه مه راوله چې سینه به دې ټپي کړم...!

تاریخ: بس فاتح صیب! زه نور څه نه وایم ته پوه شه او کار دې او په دې هم پوره باوري اوسه چې زه به دې ټول کړه وړه او ټولې کارنامې په پوره امانت سره په خپله غیږه کې خوندي کوم، ستا راتلونکې نسل ته به یې رسوم بیا ددوی کار دی چې لعنت درباندې وایې او که رحمت؟!

اوبیا فاتح دنویو منزلونو په لوري گړندی شو دهغه لاس او پښې خوځیدل او ور سره سم دتاریخ په ټټر کړې وړې کرښې جوړیدې دداسې داستانونو کرښې چې سر لیکونه یې په وینو لیکل کیدل. . . !

لنډ داستان — د ل.خرم لیکنه

# دتیارو لاروی

دماشوم سرنې په غیږ کې نیولی ؤ او همداسې خوب وړی وه، دموټر په دریدلو او دمسافرینو په کڼه ګوڼه کې ئې سترګې پرانیستلې په وارخطائې ئې خپل څنګ ته وکتل لورئې پاڅیده: « څه موری چې څو پیښور ته راورسیدو» نورخلك ټول له موټره ښکته شوی وو په ناتوانی ودریده بیده ماشوم یې ویښ کړ، ددریور اوکلینر غبرګو غږونو له خپلې دنیا نه راویستله « تروری زر زر کوه کنه، تر اوسه پورې ښکته شوی نه ئې؟»لور ئې پنډکې په غیږ کې سمدستې ښکته شوه هلك هم منډې کړې دې پسې ښکته شو ښځې چادری یوې خواته کړه او خپل نورپنډکې ئې په لاس کې ونیول چادرې ئې په څنګل باندې بیرته سمه کړه او دموټر په مینځ لارکې ژر ژر رهی شوه. «دغه دې کوزه شوم، وروره څم» او بیا له موټر څخه ښکته شوه لور او زوی ئې دسرك په ګوښه کې دې ته سترګې په لار وو ، هغه خوا دې خواته یې کتل په حیرانو او پردیو سترګو ئې خلك تعقیبول په خولو کې لانده خیشته وو هوا ورته بنده ښکاریده.

« موری اوس به چیرته ځو؟»

مور خپلې غمجنې سترګې په ځمکه او آسمان کې وخوځولې په نیم پرانیستو سترګو ئې دمازدیګر ژیړ لمر ته وکتل تیروختونه ئې دلمر په وړانګو کې خواره واره ولیدل زړه یې په دریاشو دیوی ونې څنګ ته ئې پنډوکې په ځمکه کیښودل او کیناسته، « نپوهیږم هیڅ نپوهیږم» سرئې په ونه تکیه کړ او سترګې یې پټې کړې.

ماشوم هلك راغې ترڅنګ ئې په ونه ډډه ووهله « موری وږې یم، هغه دې اوس مابنام کیږی چیرته به بیده کیږو؟»

مورئې په شونډو کې یوه چوپه موسکا و ځغلوله « هلته مو په دې څو وختونو کې چیرته شپې تیرولی کله په یوه کور ننوتلې کله په بل خپل کور مو ؤ؟ چیرته وو؟ هغه خو داګ وو ظالمانو پکې څه پریښودل؟ زویه همدا شکر وباسه چې سلامت ترې راووتلو نور نو خدای(ج) مهربانه دی هغه ټولې هیلې او امیدونه خو مو هیڅ شول...»

او بیائې دچادرې په څنډه خپلې اوښکې پاکې کړې. «خدای(ج) مهربانه دی هوبیشکه...» دسترګو په پړیو کې ئې هغه صحنې بیا را تاو شوې چې څنګه دخپلو وسلو سره په کور ننوتل د ځمکې او آسمانه اور وریده ددزو غږونو دیوالونه ښوروول هغوی لاړل دبام سرته او سنګری ئې ونیوه وریه زړه شول چې دې څنګه خپله معصومه لور په تشناب کې بندی کړه څنګه ئې دراکټ له ضربته دخونې دیوال ونړید او دی له ویرې خپل ماشومان د ویښو ډکې کوټې ته وایستل ، څومره سترې او ویرجن سزلونه یې وکړل څومره پناوی ئې و غوښتې... دزوی غږ ئې په غوږونو کې انګازه وکړه او په خود شوه: « موری دیوی وچې ډوډۍ داخستلو پیسې هم نشته؟ » مور لا هم پخپله دنیا کې ډوبه وه د زوی خوله یې لیدله چې ښوریږی خوځبری یې نه اوریدې زوی ناری کړې « موری وادی نه اوریل؟ «هه څه دی» په ځیر ئې هلك ته وکتل چادری ئې یوې خواته کړه نور ئې نو دګرمې توان نه درلود بیا یې وویل، هه؟ څه دی؟! « ادی دیوی ډوډۍ پیسې هم نشته؟ مورد خپل تخرګ دجیب په لټولو شوه او بیایې څوپیسې راوایستلې « هه ، دائې سل دائې یوسل اوشل دائې یوسل او پنځوس او دائې یې یوسل او اویا.

دهلك په بیره او ځپلې ځیره کې دخندا څپه خوره شوه خوله یې غوږ تر غوږه لاړه اوبې سوچه ئې وویل، داخودیرې پیسې دی په دې خو کباب هم اخستې شو» خورئې سروښوراوه په نیمه موسکې شونډو کې ئې ورته وویل «لوده! داخو اوغانې دی اوغانې، کلداری خوندې؟! » بیائې مورته نژدې شوه کوری ، شپه رارسیږی راځه چې یو ځای دشپې تیرولو دپاره و ګورو او بیائې په آسمان کې دخپرې تیارې ړنو څنډو ته وکتل لمر په ډوبیدو وو خو ګرمې ئې همداسې په شدت پاته وه شاوخوا ګرمی وهلو خلکو ته یې په ځغلند نظر وکتل چې څنګه مصروف ګرځې یوهم دوی ته نه ګوری هرڅوك په خپل غم کې دی، دموټرو او ریکشاوو د تیلو لوخړو او بوی هوا لاهم بوینه او بنده کړې وه « ته ګوره موری ! دلته مازیګر او ماښام هم شمال نشته څومره هوا بنده ده سړی ګمان کوی چې اوس به ئې دمه وخیژی »

مور ځواب ورنکړ بې شیمې پاڅیده په پښو ودریده چادری ئې پرمخ کش کړه او د زوی او لور سره په بې هدفه لاره سیخه شوه.

شپه ورو ورو په خوریدو وه هری خواته دسرکونو او دوکانونو ډیوې په لګیدو شوې ګرمې هماغسې په زړه تنګې او فشار سره دخولو په بهولو مصروفه وه دښار دمینځ ګڼه ګوڼه دموټرو او ریکشاوو شورماشور دوی عجلې ته ور بلل سترې ګامونه ئې دنابلده لارو په لوړو ژورو کې خوځیدل پرته له دې چې طرف یې روښانه وی دلور غږ ئې دچادرې ترشا په نا مفهومه توګه پورته شو « موری! راځه چې کوم افغان پیدا کړو ګوندې یوه شپه دخدای دپاره راکړی » «زه به ددې دوکاندار نه و پوښتم چې مهاجر چیرته وی هلك دا وویل او یو روښانه او درنګارنګ شیانو څخه ډك دوکان ته ور نژدې شو چې په مینځ کې یې یو پوخ تور رنګی سړی ناست ؤ او دخپل چادر په څوکه ئې خپلې خولې پاکولې « کاکا دمهاجرو ځای چیرته وی درته معلومات شته؟» هلك په لوړ غږ پوښتنه وکړه سړی چې په خپلو چورتو نو کې ډوب وو دده دغږ سره سم ټکان و خوړ اوبیائې دهغه وچ زیږ زیبنبلی مخ او ځلانده سترګو ته په ځیر وکتل « تاڅه ویل؟» هلك بیا پوښتنه تکرارکړه.

« مره ، دلته خو کابلیان - مهاجر ډیر دی کوم ئې غواړې ؟ تاسې هم کابلیان یاستی؟هو کابلیان یو، مقصد چې یو ځای وی چې کومه مهاجره کورنی پکې پیدا کړو.»

« هسې خو په ټول خار کې ډیر دی خوبیا په کچه ګړې حیات اباد او دې ځایونو کې بیخې ډیر دی.»

« داځای څومره لرې دی؟»

« او جی، داځای خو ډیر لرې دی خو

همدلته دی خواته په دی کاږو کی د حیات اباد دکاږی تپوس وکوی سیده به لاړ شی» اوبیایی پخپله گوته دسرك هغی تیاری کوښی ته اشاره وکړه چی څو مینی بسونه پکی ولاړ وو.

هلك په بیړه «خیر یوسی» وویل او خپلی مورته نژدی شو « ځی چی حیات اباد ته لاړ شو وائی چی هلته افغانان ډیر دی» په کوچنی ځان دخپلی مور او خور مخی ته لکه دراهنما ا و محافظ غوندی رهی شو.

توره تیاره وه یوازی دسرك ددوو غاړو چراغونو لار رڼا کړی وه دلته نو هوا لړ چلیده دښار رنگارنگ غږونه او بویونه هم نه وو یو یو تن به دسرك په غاړه ښکاره شو او بیابه په یوی تیاری کوڅی کی ورك شو.

نوی هم په ستومانه پښو چی نور نو دډیر تگ څخه تړاکی شوی وی یوی کوڅی ته سم شول ویره ، ډار، امید، نابلدی، حیا او دربدری لوی غم ئی لکه لوی لوی بارونه پخپلو اوږو کشول او په گرد پټوڅیرونه ئی دهغو فشار او درونډ والی له ورایه ښکاریدو.

شاوخوا غټو وړوکورونو ته ئی چی دخپلو چراغونو په رڼاکی ښکاریدل په شك او تردید سترگی نیولی ښکلی، غټ ، واړه ، نوی ، زاړه کورونه او نوی په سوچ کی وو « دکوم کور ور وټکوو چاته پناه ور وړو، څوك به وی، په چا به اعتماد وکړو.»

دیوه کور ددیوال ترڅنگه په کټ ناست سپین گیږی غږ ددوی دتردد چوپتیا ماته کړه، « څوك یاستی څوك مو په کار دی؟»

مور دغږ په لور مخ واړولو یو اوږد او سوړ اسویلی یی وکیښ دسرك یوی غاړی ته کیناسته « مهاجر یو، تباه شوی خلك یو، همدانن راغلی یو...» اوبیایی ستونی ډك شو، داوښکو کتار ئی په مخ پرته چادری لمده کړه« ځای نلرو دیوی شپی ځای پسی گرځو څه وکړو چاته پناه یوسو څه گناه مو کړی ده چی خدای(ج) داسی جزا راکوی...»او بیایی دځوانی لور سرسینی ته نژدی کړ نجلی هم ژړل او غلی غلی ئی سلگی وهلی.

سپین ږیری لاس په ږیره تیر کړ چادریی په اوږو واچوو اوله ځایه پورته شو په شمیرلو قدمونو نوی ته نژدی شو په داسی حال کی ئی چی دکوچنی سترې او حیران هلك پرسر دمهربانی لاس تیراوه په لوړدلی اواز ئی وویل:« حوصله کوه خوری صبر کوه خدای(ج) مهربانه دئ دلته دمهاجرو کوی نږدی دی همدا څو وخته مخکی هغه کورته یوه لویه کورنی راغله هغوی هم کابلیان دی انشاء الله تاسی چی دهر چاکورته لاړی که کابلیان وو که پاکستانی شپه به در کړی هسی که په دی خیمه او دی نیم ځانه کور کی شپه تیروی زړ ځله..» وروسته ئی هغه نیم ځانه دیوالونو ته گوته ونیوله چی دده دزاړه اوشلیدلی کټ نه هاخواپیل شوی وو.

ښځی ریږدیدلی لاس چادری کی کړ او خپلی اوښکی یی پاکی کړی سترگی ئی په نیم ځانه دیوالونو کی ښخی شوی خپل رنگ کور ئی پکی ولید « اوه خدایه! داخو هم رنگ دی څه دلته هم راکښونه لگی؟! اوبیا په هوش راغله « داکور خو دکوم نیکمرغه انسان دی داخو جوړیږی رنگیږی خونه؟!» په خود شوه زوی او لور ته یی وکتل:« راځی چی هغه نوی مهاجر ته ور شو زموږ په درد به دنورو څخه ډیر پوهیږی».

بیایی دسپین ږیری څخه دهغه کور پته وغوښته سپین ږیری هلك له لاسه ونیو او پخپله ور سره رهی شو.

* * *

ور پرانستل شو یو تکړه او تندرست پوخ سړی چی بریتونه ئی پرخوله ځوړند وو او دسر ویښتو ئی دځراغ په رڼا کی فولادی ځلاکوله ددوی ترمخ لکه یو لوی سیوری ودرید تیاره وه مخ یی واضح نه لیدل کیدو خو ښځی په یو ځغلند نظر داسی وکتله چی شاید دهغه څیره ورته اشنا وی هغه ئی بل چیرته هم لیدلی وی» څوك مو په کار دی؟

سړی په جدی او آمرانه لهجه و پوښتل « سپین ږیری ښځی ته اشاره وکړه «کابلیان دی مهاجر دی وائی چی همدانن راغلی ډیر سترې دی ځای نلری دمسلمانی او نوطن داری له مخی خوبه یوه شپه پناه ور کوی کنه.»

سړی هه! وویل او وروسته دیوی شیبی تردد نه ئی په سړه لهجه وویل ښه دی زه به یو ځل په کور کی و غږیږم او ددی خبری سره سم یی سر له وره نه راویوست او نوی ته ئی نژدی کړ په دقت یی ښځی او دهغی اولادونو ته وکتل خو دهمدی کتو سره جوخت نابیره ښځی له حیرانتیا او نفرت نه یو قدم په شاواخیست. دچادری دسوریو څخه یی دهغه سړی سترگی وپیژندلی « ای خدایه، داڅه وینم!» ټول بدن یی په ریږدیدلو پیل وکړ غلی ئی له ځان سره څو ځله تکرار کړل «نه، نه، نه» ټول حیران ولاړ وو « څه خبره ده موری څه خبره ده ؟» زوی ناری کړی دکور څښتن هم په استفهام آمیزه ډول ورته وکتل: نه ، نه ، ته زحمت مه وباسه موږ دلته پناه اخیستلی نشو، موږ دلته پناه اخیستلی .... او بیائی په چیغو چیغو په ژړاپیل وکړ دسرو سترگو دڅښتن په څیری کی یی دخپل ځوان زوی قاتل ولید هغه چی په هغه منحوسه ورځ په وروستی ورځ دشپږم خاد په وره کی ور سره مخامخ شو سری خونړۍ سترگی یی ورته ځیر کړی او په چیغه یی وویل بوږی لیونیان دی کړو نور نودی په خپل جنایتکار اشرار زوی پسی مه راځه دهغه کار فیصله شو دخپلوضد انقلاب اعمالو جزائی ولیده نور نو جامی پسی مه راوړه هغه نور نشته ځه، ځه! سرمو مه خوږوه.... ځه اوبیائی توره محافظ ته دروځه وویل عسکر یو وړوکی پنډوکی په لاس ښځی ته نژدی شو هغه یی دښځی مخی ته کیښود او په کلکه او آمرانه لهجه ئی وویل ولاړه شه ځه، ځه ادی دادی هم ده زوی جامی» هغه په وینو لت پت جامی هغه سری لیکی هغه شلیدلی گریوان» ښځی بی اختیاره ناری کړی قاتله قاتله. کافره ته زما دځوان زوی قاتل ئی، تاته څنگه پناه دروړم چادری یی له مخ څخه لری کړه « ته می نه پیژنی ځکه تا داسی خواری ، مظلومی څیری ډیری لیدلی خو زما به دکور تر غاړی ستا دامنحوسه څیره له یاده ونه وځی دابه دخدای رضا وه چی ته هم اوس مهاجر بلل کیږی او زه هم په دی فرق چی ته کور لری او زه دیوی شپی تیرولو دپاره حیرانه یم مره به شم خو تاته به پناه در نه وړم».

دچادری څنده یی پر مخ تیره کړه پنډوکی یی له ځمکی پورته کړ ژړاند زوی او لورئی مخ ته کړل او لالهانده سترې سیوری یی په تیارو کی ورك شول، دگامونو غږونه یی تر څو شیبو پوری په کوڅه کی تاویدل سړی څو شیبی په شرمیدلی او سره خوتیدلی بڼه وچ او کلك دسپین ږیری دحیرانو او غضبناکو سترگو ترمخ ودرید او بیایی ور پوری کړ».

نو خوری ورځه په هدیرو وژاره!
که بیاله قبره ایوبی پاڅی
پوهیږم نوره په ژوندو ونه شوه
ګوندی له قهره غزنوی پاڅی
* * *

دتاپه پښو کی به صربیان حلال کړی
چی ستا پوړنی ته یی بد کتلی
که نه داموږ ژوندی په مړو وشمیره
موږ یو دی خپلی بی حسی وژلی
* * *

که بیا را پاڅیدل هغه اتلان
قسم دی زر به موکسات اخلی
بیا به مؤمن ته څوك كاره نه ګوری
عبرت به واړه کاینات اخلی
* * *

بیا به دچا په عصمتونو باندی
دوحشتونو غوبل نه جوړیږی
بیا به دچا په بهارونو باندی
دستمونو سیلی نه چلیږی
* * *

نوا

خوری فریاد دی اوریدلی نشو
نوردی ویشتلی فریادونه تم کړه
چی شول بی قدره ستا داوښکو ګوهر
نور دی داوښکو بارانونه تم کړه

# صبح

ل. خرم

شیشهء آفتاب نیز شکست
وقتی از سرحد سیاهی ها
سوی برج طلوع تیری رفت
چشمها از شکنج کابوسی
درفراسوی اشك بازشدند
خون خورشید در سیاهی ریخت
دیده ها غرق درسراب شدند.

# ښه مشاور

وایی یوه ورځ یو ښکاری دځنګل په منځ کی دلاری ترڅنګ زمری ولید خو ښکاری هیڅ پروا ونه کړه او په خپله مخه ولاړ کله چی له ښکارنه بیرته په همدی لاره راستون شو او زمری ته راورسید سمدستی یی لیندی او غیشی تیار کړل او هر ډول مقابلی ته چمتو شو.
زمری چی هغه په تیاری کی ولید ورته ویی ویل چی تاخوله دی خوا دتګ په وخت کی هیڅ پروا ونه کړه اوس ولی داسی چمتو او وسله کښلی شوی؟
ښکاری ځواب ورکړ چی له دی خوا تلم ستا ترڅنګ شاهین ناست ؤ. ویل می چی شاهین به هیڅکله هم تاته بده مشوره در نه کړی، خو اوس دی ترڅنګ کارګه ناست دی چی دهر ډول بدی او شومی مشوری تمه تری کیدای شی.

# یاغی پرګنی

شفیقی

مستی اوبی خودی مو بی حسابه غوندی شوی
داوښکو ملغلری مو بی آبه غوندی شوی
اثر مو په رکوع ا و په سجود کی پاتی نه دی
چی کړیکی موله عرشه بی ځوابه غوندی شوی
شیخ، کړی په دروغو دشیطان اندیوالانو
اُف څومره ریاکاری بی حجابه غوندی شوی
دخدای(ج) موعود عذاب دی څه په کفر څه په ظلم
ککری مو ورستی چی له عتابه غوندی شوی
هغه جذبی مونشته دی چی عرش یی لړزولو
سری مو آخر وینی له شتابه غوندی شوی
چی تل به یی په خوله د « عمری عدل» نعری وی
هغه هم ګناهونو ته بی تابه غوندی شوی
دعوی دخدایی ډیری شولی اوج دبغاوت دی
ارواوی موبی ویری له عذابه غوندی شوی
داځه عجیبه نه ده چی به لوېږو له ګرنګه
خطامو دواړه پښی چی له رکابه غوندی شوی
بیدیاده ، ترووږمی‌مړده ، او منزل هم رانه ورك دی
یاغی مو پرګنی له انقلابه غوندی شوی

# دبې درکۍ اعلان!

ټولو پیریانو او بنیادمانو ته خبر ور کول کیږي چې:
دافغانستان په نامه یوې پراخې کنډوالې وارث ورک شویدی
چې مشخصات یې په دې ډول دي:
نوم : افغان
دین: اسلام
نورعادتونه او صفتونه یې:
په ټوله نړۍ کې په توره او زړورتیا ، شهرت لري.
په وعده او لفظ باندې دریږي ، چې چاته لاس ور کړي که
یې لاس په مړوند کې پرې شي هم بیرته یې نه شاته کوي.
پیړۍ په پیړۍ دیوې امپراتورۍ دشړلو ویاړ لري.
بتشکن دی، بت پال او بت فروش نه .
قرآن په «قیران» نه ورکوي بلکې سرهم دقرآن په حرمت ور
کوي.
دکور نه دسارا زمرۍ دی.
ددښمنۍ او دوستۍ حدیې دیر ښه معلوم او څرګند دي.
دوست څه چې ددښمن ناموس ته هم په بده سترګه نه ګوري.
شعار ئې « مال تر سر جار او سر تر دین او ناموس » دی
پرلویدلي «مغلوب» دښمن لاس نه پورته کوي.
وږۍ اوسیدلۍ شي خوله حرامو نه خیته نشي ډکولای.
دکور ترڅنګ یې پاټک« دلارې څنځیر» نه بېتېك
«میلمستون» دی چې مسافر چور کوي نه، عزت یې کوي
اومیلمانه کوي یې.
که هر چا لیدلی وي او یایې ووینې په دې پته دې اطلاع
ورکړي او خپله نغده شیریني دې دامت دستونزو دسمدستي
حل په ښه تر لاسه کړي.
پته: دافغانستان په نوم کنډواله.
د(۱۷) لکه شهیدانو نه د پاتې کونډو، بورو او یتیمانو لخوا.
یادونه: ویل کیږي چې نوموړی ورك شوی د« سره طاعون»
له ناروغۍ نه درغیدو په درشل کې ددماغ خلل پیدا کړی او له
کوره وتلی دی، نو ټولو بین المللي ټولنو او سازمانونو ته خبر
ور کول کیږي چې تر څو پورې نوموړی روغ رمټ خپل کورته
نه وي ستون شوی او دخپل کور غړو « د۱۷ لکه شهیدانو
وارثانو» یې صحت او عقل نه وي تائید کړی هیڅوك دې هم
ور سره راکړه ورکړه او معامله نه کوي که نه نو دخساری پړه
به یې په خپله غاړه وي.
دلټوونکو دآسانۍ لپاره باید داهم زیاته کړو چې
نوموړی «افغان» بنیادم دی او دپیښور- اسلام آباد- کابل ،
جلال آباد او کعبې ترمنځ په پاټکونو دپیمانونو ددوستیو په
انبارونو او دکرسۍ دهوس په ګردلو کې بې درکه شویدی.

تـوکه

## درې دلیلونه

ښوونکي په ټولګي کې یو شاګرد ته وویل:
په دې هکله چې ځمکه ګرځي ده درې دلیلونه
ووایه!
شاګرد: لومړی دلیل دادی چې تاسو«ښوونکي»
راته ویلي چې ځمکه ګرځي ده.
دوهم داچې پلار مې هم راته ویلي.
او دریم دلیل یې داچې په کتاب کې مې هم
لوستي دي .

## څه شئ دي؟!

له لرګو او اوسپنې څخه جوړدي.
بیل نه دی خو پیسې ډیرې پرې ګټلې کیږي.
یو وخت زموږ دعزت نخښه وه او اوس دوحشت.
پرون به چې دچا په غاړه ؤ قدر یې کیده، نن چې دچا په غاړه کې وي
خلك نفرت ترې کوي.
پرون یې چلول ثواب او اجرؤ ، خو نن عذاب او ګناه.
پرون دیوه اولس دنجات وسیله وه ، نن یې دبربادۍ او ذلت علامه .
چې ډك شي په خلکو کې وحشت خپروي چې تش شي وحشت یې په ویر
بدل کړي.
چې څومره چلیږي هومره هدیرې زیاتیږي.
یتیمان، کونډې او بورې ډیریږي.
خلکو به پخوا یوازې له دښمن سره خبرې ور باندې کولې خو اوس له وروړ
سره هم ور باندې غږیږي.
دوخت منطق ګڼلی شي.
چې څوك یې لري او چلولی یې شي کور به یې له سرو او سپینو ډك وي
جوړولای یې فرنګیان ښه شي خو چلولی یې افغانان.
یو وخت دنارینه ګانه ګڼلی شوه اوس دعیش او نوش وسیله.
او..........
پرون کابل پرې آزاد شو نن پرې ویجاړ!!
که درې دانې یې له درې متره پړې سره په لوبه لاړه پهرك"ولري تر ستر
تجارتي شرکت ګټور دی، او که یې له ضمیر سره یو ځای سودا وکړي
دلوټونو جوالونه به یې ځای نه کړي.

# ارشاد نبوی(ص)

هروالی وزمامداریکه امور و اختیارات مردم مسلمان به وی سپرده شد و او در حق ایشان جفا و خیانت کرد، خداوند بهشت را بر وی حرام گرداند.

«بخاری ومسلم»

تیری چرې دې درقیب چې په تټر وخوړی
کابله وایه ته دچا سپیره نظر وخوړی ؟!